

د پوهنې وزارت
د تعلیمي نصاب، د ښوونکو د روزنې
او د ساینس د مرکز معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تالیف لوی ریاست

# پښتو

## پنځم ټولګی



د چاپ کال: ۱۳۹۰هـ ش

# د کتاب د تألیف، څېړنې او تدقیق کمیټې

**لیکوالان:**

- د سرمؤلف مرستیال امین الله نژند د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف ریاست د پښتو دېپارتمنت آمر.
- مؤلف عبدالظاهر ګلستاني د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف ریاست رئیس.

## تایید او مطالعه:

### ملي شورا

- د ولسي او مشرانو جرګو د دیني چارو، پوهنې او لوړو زده کړو د کمیسیونونو غړي.

## د څېړنې او تدقیق کمېټې:

### کابل پوهنتون

- پوهندوی محمد رفیق رفیق د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي د پښتو دېپارتمنت استاد.

### علومو اکاډمي

- سر څېړونکی عبدالواجد واجد د افغانستان د علومو اکاډمۍ د ژبو او ادبیاتو د مرکز رئیس.

### د پوهنې وزارت

۱.دوکتور احسان الله ناشر د پوهنې وزارت د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف ریاست علمي غړی.

۲.د سر مؤلف مرستیال سید محمود کارګر د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونود تالیف ریاست د پښتو دیپارتمنټ علمي او مسلکي غړی او د دې کتاب ایډیټ کوونکی.

۳.فروزان خاموش د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونود تالیف ریاست د پښتو دیپارتمنت علمي او مسلکي غړې.

۴.د مؤلف مرستیال محمد عزیز تحریک د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونود تالیف ریاست د پښتو د پپارتمنټ آمر.

۵.د مؤلف مرستیال محمد سهراب دیدار د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونود تالیف ریاست د پښتو دیپارتمنټ غړی اود دې کتاب ایډیټ کوونکی.

۶.سیف الرحمن آشنا د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونود تالیف ریاست د پښتو دیپارتمټ ادیتور.

**انځورګران:**

نفیسه پوپلزۍ او محمد غالب الله یار.

عزیزالله د استقلال لیسې ښوونکی.

## د محتویاتو، دینی، فرهنګي او سیاسي برخو د څېړنې او کره کتنې کمېټې:

- ډاکټر عطاء الله واحدیار د پوهنې وزارت ستر سلاکار او د نشراتو رئیس.
- دوکتور محمد یوسف نیازی د پوهنې وزارت سلاکار.

## د څېړنې او تدقیق د څارنې کمېټه:

- دکتور اسدالله محقق د تعلیمي نصاب د پراختیا، د ښوونکو د روزنې او د ساینس مرکز معین
- دکتور شېر علي ظریفي د تعلیمي نصاب د پراختیا د پروژې مسؤول
- د سرمؤلف مرستیال عبدالظاهر ګلستاني د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی رئیس

**کمپوز او ډیزاین:**

رحمت الله غفاري



## ملي سرود

| | |
|---|---|
| دا وطـــن افغانـــستـان دی | دا عـــزت د هـــــر افغـــان دی |
| کــور د ســولې کــور د تــورې | هــــر بچـــی يـــې قهرمـــان دی |
| دا وطـــن د ټولـــو کـــور دی | د بلوڅـــــــــو د ازبکـــــــو |
| د پـــــښتـــون او هـــــزاره وو | د ترکمنــــــــو د تاجکــــــو |
| ورســره عــرب، ګوجــر دي | پامېـــــــريان، نورستانيـــــــان |
| براهـــوي دي، قزلبـــاش دي | هــم ايمـــاق، هــم پـــشه يـــان |
| دا هيـــواد بـه تـل ځليـږي | لکـــه لمــــر پـــر شــنه آسمــــان |
| پـه سينـــه کـــې د آسيـــا بـه | لکـــــــه زړه وي جــــــــاويدان |
| نـوم د حـــق مـــودی رهبــــر | وايــــو الله اکبـــر وايــــو الله اکبــــر |

**بسم الله الرحمن الرحيم**

## د پوهنې د وزير پيغام

**گرانو ښوونکو او زده کوونکو،**

ښوونه او روزنه د هر هېواد د پراختيا او پرمختگ بنسټ جوړوي. تعليمي نصاب د ښوونې او روزنې مهم توکی دی چې د علمي پرمختگ او ټولنې د اړتياوو له مخې رامنځته کيږي. څرگنده ده چې علمي پرمختگ او ټولنيزې اړتياوې تل د بدلون په حال کې وي. له دې امله لازمه ده چې تعليمي نصاب هم علمي او رغنده انکشاف ومومي. البته نه ښايي چې تعليمي نصاب د سياسي بدلونونو او د اشخاصو د نظريو او هيلو تابع شي.

دا کتاب چې نن ستاسو په لاس کې دی، پر همدې ارزښتونو چمتو او ترتيب شوی دی. علمي گټورې موضوعگانې پکې زياتې شوې دي. د زده کړې په بهير کې د زده کوونکو فعال ساتل د تدريسي پلان برخه گرځېدلې ده.

هيله من يم دا کتاب له لارښوونو او تعليمي پلان سره سم د فعالې زده کړې د ميتودونو د کارولو له لارې تدريس شي او د زده کوونکو ميندې او پلرونه هم د خپلو لوڼو او زامنو په باکيفيته ښوونه او روزنه کې پرله پسې گډه مرسته وکړي چې د پوهنې د نظام هيلې ترسره شي او زده کوونکو او هېواد ته ښې برياوې ور په برخه کړي.

زه پر دې ټکي پوره باور لرم چې زموږ گران استادان او ښوونکي د تعليمي نصاب په رغنده پلي کولو کې ستره دنده او دروند مسؤوليت لري.

د پوهنې وزارت تل زيار کاږي چې د پوهنې تعليمي نصاب د اسلام د سپېڅلي دين له بنسټونو، د وطن دوستۍ د پاک حس په ساتلو او علمي معيارونو سره سم د ټولنې د څرگندو اړتياوو له مخې پراختيا ومومي.

په دې ډگر کې د هېواد له ټولو علمي شخصيتونو، د ښوونې او روزنې له پوهانو او د زده کوونکو له ميندو او پلرونو څخه هيله لرم چې د خپلو نظريو او رغنده وړانديزونو له لارې زموږ له مؤلفانو سره د درسي کتابونو په لا ښه تاليف کې مرسته وکړي.

له ټولو هغو پوهانو څخه چې ددې کتاب په چمتو کولو او ترتيب کې يې مرسته کړې، له ملي او نړيوالو درنو موسسو، او نورو ملگرو هېوادونو څخه چې د نوي تعليمي نصاب په چمتو کولو او تدوين او د درسي کتابونو په چاپ او وېش کې يې مرسته کړې ده، مننه او درناوی کوم.

ومن الله التوفيق

فاروق وردگ

د افغانستان د اسلامي جمهوريت د پوهنې وزير

# لړلیک

# لومړی لوست

## حمد

**موخه**: دمتن لوستل ، ليکل ، د حمد په اړه معلومات ورکول او په شعر کې د نويو کلمو په معنا پوهېدل دي.

**هڅوونکې پوښتنې**:

- ويلی شئ چې په حمد کې د چا صفت او ستاينه کېږي؟
- تاسې دلوی خدای ( جل جلاله ) د قدرت د ننبوننبانو بېلگې ووايئ؟

پـــه نـامـه د هـغـه خـدا ی مـې دا بـيـان دی
چې يـو نـوم يـې په نـومـو نـوکـې سبـحـان دی

هـم پـادشـاه دی دجـمـلـه وو پـادشـاهـانـو
هـم دهـر يـوه سـلـطـان پـه سر سلطـان دی

هـغـه کـار چې وهـر چـاوتـه مـشـکـل دی
هـغـه کـار واړه وده وتـه آسـان دی

څـوک آفـتـاب شـي پـر آسـمـان راخـېـژولـی
ده آفـتـاب را خـېـژولـی پـرآسـمـان دی

څـوک دلـمـر پـر مـخ حـجـاب شـي غـوړولـی
ده پـټ کـړی لـمـر پـه ابـر کـې پـنـهـان دی

(عبدالرحمن بابا)

**ښوونکي ته لارښووني:**

- ښوونکی دې دلوست په اړه څو پو ښتني وکړي.
- ښوونکی دې نظم په لوړ اواز ولولي .
- ښوونکی دې د نظم مطلب په ساده ژبه په نثر واړوي.

## دزده کوونکو فعالیتونه:

١. دلاندې کلمو معنی له یاده پیدا کړئ او د کلمو تر څنګ یې په خپلو کتابچوکې ولیکئ.

- سبحان پاک
- سلطان
- حجاب
- ابر

٢. په لاندې کلمو کې عام او خاص نومونه وښیئ.

- کابل خاص
- ښوونکی
- کتاب
- خدای (جل جلاله)

دلوستل شوي نظم اصلي مفهوم په خپلو کتابچوکې ولیکئ.

٣. دلاندې بیت مفهوم څه شی دی په خپلو کتابچوکې یې ولیکئ.

هغه کار چې وهرچاوته مشکل دی هغه کار واړه و ده وته آسان دی

**ارزونه:**

- آیا زده کوونکي شعر سم لوستلی شي؟
- دحمد په اړه خبرې کولی شي؟
- لوستل شوی شعر په نثر اړولی شي؟
- آیا زده کوونکي د کلمو مترادف شکل له یاده ویلی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې دلوی خدای (جل جلاله) دقدرت دنښو نښانو په اړه څو جملې ولیکي.

# دويم لوست

## حضرت عثمان (رضی الله عنه)

**موخه**: دمتن لوستل، ليکل د حضرت عثمان (رضی الله عنه) پېژندنه او په متن کې دنومونو زده کول دي.

**هڅوونکې پوښتنې**:

- ويلی شئ چې حضرت عثمان (رضی الله عنه) څوک و؟
- حضرت عثمان (رضی الله عنه) زموږ د پيغمبر (صلی الله عليه وسلم) څووم يار دی؟

حضرت عثمان (رضی الله عنه) د حضرت محمد (صلی الله عليه وسلم) درېم يار دی، د حضرت محمد (صلی الله عليه وسلم) له پيدا ايښت څخه پنځه کاله وروسته زېږيدلی دی دپلار نوم يې عفان و. حضرت عثمان (رضی الله عنه) د حضرت ابوبکر صديق (رضی الله عنه) په لارښوونه د اسلام په مبارک دين مشرف شو. د تقوا او حيا خاوندو. له ليک او لوست سره يې مينه درلوده، همدا راز يې په سخاوت کې شهرت درلود کله چې حضرت عثمان (رضی الله عنه) د اسلام په مبارک دين مشرف شو نو قرآن کريم يې په ياد زده کړ چې د هغه په پوهه کې يې لازياتوالی راوست او د ده دخلافت په موده کې قرآن کريم په يوه مصحف کې را ټول شو.

حضرت عثمان (رضی الله عنه) پرته له خلافت څخه سودا ګري هم کوله او له دې لارې څخه يې زياته حلاله شتمني پيدا کړه او خپله شتمني يې د اسلام دمبارک دين په لاره کې لګوله. حضرت عثمان (رضی الله عنه) د حضرت عمر (رضی الله عنه) له شهادت څخه وروسته د مسلمانانو مشر وټاکل شو.

د خلافت په دوره کې يې ډېر فتوحات کړي او خلک يې د اسلام سپېڅلي دين ته را بللي دي او دده مبارک د خلافت په وخت کې افغانستان ته هم د اسلام سپېڅلی دين راورسېد.

دولس ورځې کمې دولس کاله يې خلافت وکړ او په پای کې د باغيانو او اسلام د دښمنانو له لاسه په داسې حال کې په شهادت ورسېد چې د قرآن کريم تلاوت يې کاوه.

## ښوونکي ته لارښووني:

- ښوونکی دې متن په لوړ اواز ولولي.
- ښوونکی دې دمتن مطلب له زده کوونکو څخه وپوښتي.

## دزده کوونکو فعالیتونه:

١. لغتونه او معناګانې:

| | |
|---|---|
| - تقوا | پرهېزګاري |
| - سخاوت | ځوانمردي، ورکړه |
| - خلافت | استازیتوب، نیابت |
| - مصحف | دقرآن کریم کتاب |
| - شتمني | دارایي |

٢. لاندې جملې ولولئ او نومونه په کې وښیئ! بیا یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ!

حضرت عثمان ( رضی الله عنه ) د حضرت ابوبکر صدیق ( رضی الله عنه ) په لارښوونه د اسلام په مبارک دین مشرف شو .

٣. په لاندې جملو کې د ربط توري و ښیئ او بیا یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

حضرت عثمان ( رضی الله عنه ) د حضرت ابو بکر صدیق ( رضی الله عنه ) پـه لارښوونه د اسلام په مبارک دین مشرف شو.

- د تقوا او حیا خاوند و.
- همداراز یې په سخاوت کې شهرت درلود.
- له لیک او لوست سره یې مینه وه .

### ارزونه:

- آیا زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- دحضرت عثمان په اړه یې پو هه حاصله کړه؟
- په جملو کې نومونه پیدا کولی شي؟
- د ربط توري په جملو کې پیدا کولی شي؟

### کورنۍ دنده:

د متن نوې کلمې خپلو کتابچو ته ورسوئ او په جملو کې یې هم وکاروئ.

## دريم لوست

# غږ پوهنه

**موخه:** د متن لوستل، ليکل؛ د غږ پوهنې په معنا او مفهوم پوهېدل دي.

**هڅوونکې پوښتنې:**

- ويلی شئ چې غږ پوهنه څه ته وايي؟
- غږ پو هنه څه شی څېړي ؟

**غږ پوهنه** : هغه پوهنه ده چې په ژبه کې د خبرو آوازونه څېړي.

لکه : مور_پلار _ خور_ ورور _ د ( مور ) کلمه درې غږونه (م، و ، ر) لري د ( پلار ) کلمه څلور غږونه (پ، ل، ا ، ر) لري د کاکا کلمه هم څلور غږونه (ک، ا ، ک، ا) لري او د ( ماما) کلمه هم (م، ا ، م، ا).

### ښوونکي ته لارښوونې:

- متن ولوله او د غرېږو هنې په اړه په کلمو کې ببلګې وړاندې کړه.
- دغږونو د منځ ته را تللو په اړه خبرې او معلومات ورکړه.
- ښوونکی دې څو کلمې په تخته ولیکي او پر زده کوونکو باندې دې کلموته بدلون ورکړي. لکه (لور) که د(ل) توري په ځای (ک) توری راشي د (کور) کلمه ترې جوړېږي چې په شکل کې هم بدلون راغی او د کلمې په معنا کې هم.

### دزده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي.
۲. زده کوونکي دې لاندې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي او دهرې کلمې د لومړي توري په بدلون سره دې یوه بله معنا لرونکې کلمه ترې جوړه کړي.

(ناک، لور، نور، منډه، تېر، ګټه، جوړه، چم).

مثال: د (ناک) د کلمې د (ن) توري په ځای د (پ) توری وکارول شي د(پاک) کلمه ترې جوړېږي.

غږونه د سږو دهوا د را وتو په وسیله منځ ته راځي. هوا له سږو څخه راووځي او دستوني، مرۍ، حنجرې، ژبې، تالو، سپږمو، غاښونو، ژبې او شو نډوسره داړیکو په وسیله آواز پیدا کیږي د مثال په توګه د (ب) او (پ) دتوروپه آوازونو کې شونډې تړل کېږي اوپه یوه وار ببرته کېږي دتلفظ په وخت کې خو له او شونډې پرانیستل کېږي او آواز له خولې څخه راووځي.

### ارزونه:

- زده کوونکي په دې پوه شول چې غږونه له کوم ځای څخه را وځي؟
- زده کوونکو وکولی شول چې کلمو ته دتوري په بدلون بله معنا لرونکې کلمه جوړه کړي؟

### کورنۍ دنده:

لاندې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکئ او بیا یې د لومړي توري په بدلون نورې مناسبې سمې کلمې ترې جوړې کړئ!

(کار – مار – نوک – کټ – مور – بل).

# څلورم لوست

## مېلمه پالنه

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل؛ د مېلمه پالنې په دود او رواج پوهېدل او په متن کې د صفت کلمې په نښه کول دي.

**هڅوونکې پوښتنې:**

- د مېلمه درناوی زموږ په ملي دود کې ولې ارزښت لري؟
- که ستاسې کور ته مېلمه راشي دهغه څه ډول خدمت کوئ؟

مېلمه پالنه زموږ په خلکو کې يو ډېر لرغونی ملي او ديني دود دی . افغانان مېلمه ته په درنه ستر ګه ګوري او د خپل وس او توان په اندازه يې قدر، درناوی او خدمت کوي .او مېلمه دلوی خدای (جل جلاله) عطا ګڼي، که څه هم زموږ د ځينو خلکو اقتصادي حالت ښه نه دی خو کله چې د چا کورته مېلمه راشي نو دهغه د قدر، درنښت او خدمت لپاره هر څه چې په کورکې لري په ډېر اخلاص يې پخوي



او په ډېر عزت يې ورته په مخکې ږدي. همدا راز زموږ خلک له خپلو مېلمنو سره په ورين تندي خبرې کوي په همدې توګه زموږ خلک هېڅکله داسې حرکت نه کوي چې د مېلمه د خپګان سبب وګرځي او په ډېره مينه ورسره ناسته ولاړه کوي، ځکه دوی په دې باور لري، که چېرې مېلمه ورڅخه خپه شو په حقيقت کې خدای (جل جلاله) او د هغه رسول (صلی الله عليه وسلم) ورڅخه خپه شول .

لنډه دا چې مېلمه پالنه دتاريخ په اوږدوکې دافغانانو يو غوره او ځانګړی صفت دی چې د نړۍ خلک ترېنه هم خبردي او زموږ دغه وياړلی دود په ډېر درناوي سره ستايي.

ښوونکي ته لارښوونې:

- دمېلمه پالنې په اړه له زده کوونکو څخه معلومات وغواړئ چې هغوی په خپله خبرې وکړي.
- له متن څخه د بېلګې په ډول د (صفت) یوه کلمه د تختې پر مخ ولیکئ او زده کوونکي وهڅوئ چې په متن کې د صفت نورې کلمې په خپله پیدا کړي.

## دزده کوونکو فعالیتونه:

۱. متن له یو بل سره په چوپتیا ولولئ!
۲. دمېلمه پالنې په هکله دې د ټولګي مخکې خبرې وکړي.
۳. په لاندې جملو کې د فعل او ضمیر کلمې وښیئ او بیا یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.
   - کله چې د چا کورته مېلمه راشي نو دهغه دقدر، درنښت او خدمت لپاره هرڅه چې په کور کې لري په ډېر اخلاص یې ورته پخوي او په ډېر عزت یې دهغه په مخکې ږدي.
   - خلک دخپلو مېلمنو سره په ورینه تنده خبرې کوي او د هغوی د حال او احوال پوښتنه کوي.
۴. لاندې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکئ او بیا یې دلومړي توري په بدلون داسې بله کلمه ترې جوړه کړئ چې معنا لرونکې وي.
   لکه: (کور ـ پور ـ حال ـ مینه ـ حرکت)

ارزونه:

- آیا زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- د مېلمه پالنې په اړه په شفاهي توګه معلومات وړاندې کولی شي؟
- په جملو کې یې د صفت کلمې پیدا کړې شوې؟
- په ورکړل شوو جملو کې یې د فعل او ضمیر کلمې پیدا کړې شوې ؟

کورنۍ دنده:

په خپلو کتابچو کې د مېلمه پالنې په اړه اووه کرښې ولیکئ!

## پنځم لوست

# مترادفې (هم معنا) کلمې

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د مترادفې کلمې پر معنا او مفهوم باندې پو هېدل دي.

**هڅوونکې پوښتنې:**

- مترادفې کلمې څه ډول کلمو ته ویل کېږي؟
- ایا څوک د مترادفې کلمې بېلګې یادولی شي؟

**مترادفه کلمه** : هغه کلمه چې په شکل اوبنه کې سره تو پیرلري او معنا یې سره ورته وي مترادفه کلمه بلل کیږي.

لکه: په لاندې کلموکې چې مترادفې کلمې لیدل کېږي.

| | |
|---|---|
| کوښښ | زیار |
| ښکلی | ښایسته |
| تیره | ډېره |
| نړۍ | دنیا ، جهان |
| لوی | غټ |

**ښوونکي ته لارښوونې:**

- متن په لوړ اواز ولوله.
- دمترادفې کلمې په اړه معلومات له بېلګو سره ورکړه.
- زده کوونکي وهڅوئ چې نورې مترادفې کلمې له یاده ووایي او هم یې معنا پیدا کړي.

## دزده کوونکو فعالیتونه :

۱. زده کوونکي دې متن ولولي.

۲. لاندې جملې دې په خپلو کتابچو کې ولیکي او تر مترادفو کلمو لاندې دې کرښه وکاږي.

- انسان چې روغ او جوړ وي ښه کار کولای شي.
- زرغونه دا ز موینې په تېرولو ډېره خوشحاله او خوښه ښکاري.
- زموږ د پښتو ښوونکی پاک او سپېڅلی ځوان دی.

۳. د لاندې کلمو مترادفې یا هم معنا کلمې له چوکاټونو څخه پیدا او د کلمو تر څنګه یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

ډېر -----------
وطن -----------
دنده -----------
چاپېریال _____
ښکلی _______

| نبایسته | وظیفه | هېواد |
|---|---|---|
| | شاوخوا | زیات |

۴. لاندې متن ولولئ! مترادفې کلمې په کې پیدا او په خپلو کتابچو کې ولیکئ!

رنګینه او امین خوراو ورور دي .دوی په یوه شنه او زرغون بڼ کې خوښ او خو شحاله روان وو. هغوی ښکلي او ښایسته کالي اغو ستي وو. دواړه په بڼ کې داسې ښکارېدل تا به ویل چې هېڅکله یې ناروغتیا اوناجوړتیا نه ده لیدلي او تل همداسې روغ او جوړ دي. دبڼ په هره خوا کې خوښي او خو شحالي وه. هرې خواته د مر غیو چغهار، سندرې اوناري وې. ورو ورو رڼا مخ په کمېدو شوه. هره خوا تپه تیاره او تور تم شو، په آسمان کې برېښنا شوه. باران په اورېدو پیل وکړ. رنګینه او امین دواړه په ځغاسته او منډه کورته لاړل.

ارزونه:

- څوتنه زده کوونکي دې ځواب ورکړي چې مترادفې کلمې څه ډول کلمې دي؟
- څوتنه زده کوونکي دې یو بل ته مترادفې کلمې وواییي او بل تن دې دهغو کلمو هم معنا پیدا کړي.
- ایا زده کوونکی دمترادفو کلمو په معنا او مفهوم پوه شول؟

کورنۍ دنده:

په خپلو کتابچو کې څو مترادفې کلمې ولیکئ. معنا یې پیدا او بیایې په جملو کې وکاروئ.

## شپږم لوست

# غوره وینا وې

موخه: د متن سم لوستل، لیکل، دغوره وینا په مطلب پو هېدل، پـه هغـو عمـل کول او په ویناووکې د مترادفو کلمو په نښه کول دي.

### هڅوونکې پوښتنې:

- آیا تاسو له چا څخه غوره ویناوې اوریدلې دي؟ که مو اورېد لې وي ویې وایئ؟
- غوره ویناوې کومو ویناوو ته وایې؟

۱- هسې ربتیني ملګري ومومئ چې په ښه ورځ مو مجلس پرې ښایسته وي او په سخته ورځ مو ملا ترې شي.

حضرت عمر (رضی الله عنـه)

۲- هر څوک چې زموږ عیبونه را ښیي پاک خدای (جل جلاله) دې پرې ورحمیږي.

حضرت عمر (رضی الله عنـه)

۳- غم او نهیلي د بېکاره خلکو صفتونه دي.

حضرت علي کرم الله وجهُـه

۴- د سړي قدر د هغه د علم او ادب پـه اندازه پـه کـار دی، نـه د هغـه د شـتمنۍ او نسب له مخې.

حضرت علي کرم الله وجهُـه

## ښوونکي ته لارښوونې:

- غوره ويناوې ولوله او په مطلب يې خبرې وکړه!
- له زده کوونکو څخه د غوره ويناوو مطلب په هکله پوښتنې وکړه!

## دزده کوونکو فعاليتونه:

۱. غوره ويناوې په چوپتيا سره ولولئ!
۲. دهر ګروپ يو کس دې د ټولګي مخکې ديوې وينا په مطلب خبرې وکړي.
۳. دلاندې کلمو هم معنا پيدا اوپه خپلو کتابچو کې وليکئ.

(ملګري، مجلس، ښايسته، عيبونه، پاک، غم، صفتونه، قدر، علم، شتمنۍ تلاوت، عبادت ، نهيلي )

۴. غوره ويناوې ولولئ او بيا د هرې وينا مطلب په خپلو کتابچو کې وليکئ.

### ارزونه:

- ايا زده کوونکي متن سم لو ستلی شي؟
- دغوره ويناوو په مطلب پوه شوي او خبرې پرې کولی شي؟
- دورکړل شوو کلمو هم معنا يې پيدا کړای شي؟

## کورنۍ دنده:

لاندې نوي لغتونه په خپلو کتابچو کې وليکئ او په جملو کې يې وکاروئ.

(عيبونه، نيمګړتياوې عبادت، ناهيلي، نا اميدي)

# اووم لوست

## بي بي عايشه (رضى الله عنها)

**موخه**: د متن لوستل ، ليكل، دبى بى عايشى رضى الله عنها په اړه معلومات او په متن کې د صفت د کلمو په ګوته کول دي.

**هڅو ونکې پو ښتنې:**

- ويلاى شئ چې بي بي عايشه ( رضى الله عنها) څوک وه ؟
- بي بي عايشه ( رضى الله عنها ) زموږ د ګران پيغمبر حضرت محمد (صلى الله عليه وسلم) څه کيده؟

د مسلمانانو مور بي بي عايشه (رضى الله عنها) د حضرت ابوبکر صديق (رضى الله عنه) لوروه ، چې په مکه معظمه کې زېږېدلې او حضرت محمد (صلى الله عليه وسلم) د بي بي خديجې (رضى الله عنها) تر وفات وروسته ورسره واده وکړ. له حضرت محمد ( صلى الله عليه وسلم ) څخه يې د ديني علم زده کړ. دا ډېره پوهه او عالمه بي بي وه.

ډېرو ښځينه مسلمانانو او اصحابو کرامو به له هغې څخه ديني مسايل زده کول او د سختو مسئلو پو ښتنې به يې ور څخه کولې. دا هم ديا دولو وړه چې زيات شمېر احاديث ترې روايت شوي دي، د الله ( جل جلاله) د کتاب د علم په وسيله خلک ډېرو لوړو مرتبوته رسېدلي دي.په يوه حديث شريف کې دا موضوع داسې بيان شوې ده:

((د علم زده کړه په هر (نارينه او ښځينه) مسلمان باندې فرض ده.))

بي بي عايشه ( رضى الله عنها) هم د علم او پوهې په برکت دغې لوړې درجې او مقام ته رسېدلې وه.

بي بي عايشه (رضى الله عنها) د (٦٦) کالو په عمر په مدينه منوره کې وفات او هلته خاوروته وسپارل شوه.

### ښوونکي ته لارښوونې:

- متن ولوله!
- ښوونکی دې دبي بي عايشې (رضی الله عنها) په اړه له زده کوونکو څخه معلومات وغواړي.

### دزده کوونکو فعاليتونه:

١. متن په چوپتيا سره د يو بل په مرسته ولو لئ!
٢. دلاندې جملو تش ځايونه په درکړل شوو مناسبو کلمو سره په خپلو کتابچو کې ډک کړئ!
- بي بي عايشه (رضی الله عنها) په مکه معظمه کې زيږيدلې.... (ده، دی)
- له حضرت محمد (صلی الله عليه وسلم) څخه يې ------ علم زده کړ. (ديني ، اخلاقي)
- داډېره پوهه او عالمه بي بي ---------. (دی ، وه ، ده).
- ډېرو ښځينه مسلمانانو او اصحابو کرامو به له هغې څخه ديني مسايل -------------.
- (زده کول ، ياده ول)
٣. لاندې جملې ولولئ ، په خپلو کتابچو کې يې وليکئ او بيا د صفت کلمې لاندې کرښه وکاږئ.
- داډېره پوهه او عالمه ښځه وه.
- بي بي عايشه (رضی الله عنها) د علم او پوهې په برکت دغې لوړې درجې او مقام ته رسېدلې وه.

ارزونه:
- آيا زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- دبي بي عايشې (رضی الله عنها) په هکله معلومات ورکولی شي؟
- دجملو تش ځايونه په مناسبو کلمو ډکولی شي؟

### کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د بي بي عايشې (رضی الله عنها) په هکله يوه لنډه مقاله وليکي چې له شپږو کرښو څخه لږه نه وي.

اتم لوست

# متضادې کلمې

**موخه:** د متن سم لوستل، ليکل، او د متضادې کلمې په معنا او مفهوم پوهيدل دي.

**هڅوونکې پوښتنې:**

- تاسو په مخکې ټولګيو کې متضادې کلمې لوستلې دي؟ که مو لوستلې وي څو بېلګې يې ووايئ!
- ستاسې په نظر متضادې کلمې څه ډول کلموته وايي؟
- آيا کولی شئ چې څو متضادې کلمې پر تخته وليکئ؟

| |
|---|
| **متضادې کلمې:** هغه کلمې دي چې د معنا له پلوه يوه د بلې ضد وي. لکه په دې کلمو کې:<br>(تور ـ سپين) (ژړا ـ خندا) (اور ـ اوبه) |

لاندې جملې ولولئ او هغو کلمو ته ځير شئ چې کرښه ورلاندې اېستل شوې ده.

- دپسرلي په سرکې شپه او ورځ سره برابره وي.
- په ژمي کې هوا سړه وي او انسان توده هوا خوښوي.

**ښوونکي ته لارښووني:**

- ښاغلی ښوونکی دې متن ولولي.
- د متضادو کلمو په اړه دې معلومات ورکړي او بېلګې دې له زده کوونکو څخه و غواړي.

## دزده کوونکو فعاليتونه:

١. لاندې بيتونه ولولئ او په خپلو کتابچوکې يې وليکئ! تر متضادو کلمو لاندې کرښه وکاږئ!

کار ګران مو شپه او ورځ په کارلګيا دي
د هېواد سختو دردونو ته دوادي
دژوندون سرې تودې زغمي په مينه
دوطن د ابادۍ لار کې فنا دي

(محمد عثمان نژند)

۲. تاسې هم ددې چوکاټ په څېر په خپلو کتابچو کې يو چوکاټ جوړ کړئ او بيا د هرې کلمې په مخ کې يې وليکئ.

سپين : تور
ډېر :
غښتلی :
يووالی :
ښکلا :

۳. د لاندې جملو د نښه شوو کلمو ضد په چوکاټ کې پيدا کړئ او د جملو تر څنګ يې په خپلو کتابچو کې وليکئ!

لږ ، واړه ، بدرنګ ، تاوان

- په افغانستان کې لوی او واړه غرونه (ډېر) دي. ___کم___.
- دغو غرونو زموږ هېواد (ښکلی) کړی دی. ________.
- زموږ په هېواد کې (لوی) غرونه هم ډېر دي ___________.
- زموږ دهېواد غرونه موږ ته ډېره (ګټه) لري _______________.

ارزونه:

- زده کوونکي دمتضادې کلمې په معنااو مفهوم پوه شول؟
- ايا زده کوونکي دمتضادو کلمو په هکله خبرې کولی شي؟
- زده کوونکو وکولی شول چې متضادې کلمې په جملو کې وکاروي؟

کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچوکې څو متضادې کلمې وليکي او بيا دې په جملو کې وکاروي.

## نهم لوست

# معیوب هلک

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل، د معیوب هلک حقونوته درناوی کول او د نویو کلمو په معنا پوهېدل دي.

**هڅوونکې پوښتنې:**

- تاسې د معیوبینو په هکله څه ویلی شئ؟
- موږ باید له معیوبو خلکو سره څه وکړو؟



حبیب په یوه پښه معیوب دی دوه کاله مخکې کله چې هغه له خپل پلار سره کروندې ته روان و، په یوه ماین برابر شو او په دې پېښه کې یې خپله پښه له لاسه ورکړه. هغه ډېره موده غمجن و، ځکه هغه نه شو کولی چې له نورو هلکانو سره لوبې وکړي.

د حبیب ځینو ملګرو له ده سره ملګرتیا پرېښوده د حبیب ځوښه ملګري د هغه په حال خواشیني وو. هغوی دا فکر وکړ چې څنګه له حبیب سره مرسته وکړي. هغوی داسې لوبې پیل کړې چې په هغو کې حبیب هم برخه اخیستلی شوه.

ناصر د حبیب همزولی و. هغه ته دا ښکاره وه چې حبیب له زده کړې سره ډېره مینه او علاقه لري. هغه حبیب د ښوونځي تللوته و هڅاوه. اوس حبیب په پنځم ټولګي کې دی او ښوو نځي ته د لکړو په مرسته ځي، حبیب په درسونو کې ډېر تکړه دی. له نورو زده کوونکو سره هم په درسونو کې مرسته کوي.ټول ښوونکي له هغه څخه ډېر خوشحاله دي. د حبیب کورنۍ، ملګري او ښوونکي له ده سره ډېره مینه لري. ځکه حبیب ډېر زیار باسي او د ژوند په هره برخه کې بریالی دی. حبیب وایي زه به په راتلونکي کې د معیوبینو د مرستې لپاره ډېر خدمتونه وکړم. اوس حبیب د روغو هلکانو په څېر ژوند کوي.

**ښوونکي ته لارښوونې:**

- د معیوبینو سره د مرستې په هکله زده کوونکو ته معلومات ورکړه!
- زده کوونکي و هڅوه چې په دې اړه د ټولګي په مخکې خبرې وکړي.

**د زده کوونکو فعالیتونه:**

۱. متن دې په لوړ اواز ولولي.
۲. دلاندې نوو کلمو هم معنا له چوکاټ څخه پیدا او په خپلو کتابچو کې یې د کلمو ترڅنګ ولیکئ.

معیوب___________

خواشینی________

پیل____________

وهڅاوه_________

| تشویق یې کړ |
| --- |
| عیبي |
| خپه |
| شروع |

۳. لاندې جملې ولولئ! په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ او د ضمیر تر کلمو لاندې کرښه وکاږئ.

- هغه له خپل پلار سره کروندې ته روان و.
- د حبیب ښو ملګرې د هغه په حال خواشینی وو.
- هغوی داسې لو بې پیل کړې چې په هغو کې حبیب هم برخه اخیستلی شوه.

۴. پوښتنې:

- حبیب د څه شي له کبله معیوب شوی و؟
- هغه ولې غمجن و؟
- حبیب له کومولوبو څخه خوشحاله شو؟

**ارزونه:**

- آیا زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- دنو یو کلمو هم معنا پیدا کړی شوې؟
- په جملو کې یې د ضمیر کلمې پیدا کړې؟

**کورنۍ دنده:**

په خپلو کتابچو کې د معیوبینو په هکله شپږ کرښې مقاله ولیکئ.

## لسم لوست

# ملي يووالی

موخه: د متن سم لوستل، ليکل، د نظم په معنا او مفهوم پوهېدل او په متن کې د متضادو کلمو په نښه کول دي.

### هڅوونکې پوښتنې:

- ملي يووالی څه ته وايي؟
- د ملي يووالي په ارزښت خبرې وکړئ؟

هره پانه يې لايقه د ستاينې — په يو باغ کې وي ولاړې ډېرې ونې
په يوه هواکې ټولې لويېدلې — له يوې ويالې اوبه ورته راتللې
ښه او بد يې وو شريک يو يې واکدارو — ددې ټولو يو خزان او يو بهارو
لکه ګوتې ديوه وجود دلاس وي — ځينې جګې ځينې ټيټې کوز او پاس وي
د منې او ناک توپيرله و را معلوم و — چنار لوړ و شفتالو لکه ماشوم و
هر مرغه مو پېژانده له خپل آوازه — د مرغانو وي نغمې پکې ځوړازه
لکه وي چې ولسونه په وطن کې — رنګارنګ ګلونه وو يوه چمن کې
ماليار و په هره ونه ډير زهير — په حقونو کې يې نه وڅه توپير
په تمامه معنا يو واحد ملت و — يو له بله يې په هرڅه کې شرکت و
پکې هر قسمه ګلونه بوټي ګوره — لکه باغ يو مملکت وګڼه وروره
ببل رنګونه، ببل غږونه، ببل خويونه — دوه سکه ورونه لري ببل ببل نومونه

مګر دواړه اوسيدونکي ديو کوروي
د يوې سترګې په کور کې سپين او توروي

ګل پاچا الفت

## ښوونکي ته لارښوونې:

- متن په لوړ اواز ولوله!
- شعر معنا کړه او په مفهوم يې رڼا واچوه!
- پر زده کوونکو باندې په شعر کې متضادې کلمې پيدا کړه! او پر تخته يې ور باندې وليکه!

## د زده کوونکو فعاليتونه:

۱. دلاندې کلمو متضادې کلمې پيدا او په خپلو کتابچو کې يې د کلمو تر څنګ وليکئ او بيا يې په جملو کې وکاروئ!

الف : ښه ________ ت: جګې ________ هـ: شپه ________

ب: بهار ________ د: لوی ________

۲. دلاندې پوښتنو سم ځوابونه وټاکئ.

- له جګو اوتيټو ونوڅخه مطلب څه دی؟

الف) د ملي يووالي ښېلګې پېژندل.

ب) د مشرانو او همزولو پيژندل.

۳. ددې نيم بيتي مطلب څه دی؟ «د مرغانو وي نغمې پکې ښورازه»

الف: د شعرونو او سندرو ډولونه.

ب: د مرغانو خبرې کول.

۴. ددې نيم بيتي مطلب څه دی؟ «رنګارنګ ګلونه وي يوه چمن کې»

سم ځواب يې په نښه کړئ او بيا يې خپلو کتابچو کې وليکئ.

الف: دنرګس، غاټول او ګلاب ګل ونه دي.

ب: په يوه وطن کې د بېلابېلو قومونو ګډ اوسېدل دي.

ج : دچمن د ګلانو پېژندنه ده.

## ارزونه:

- زده کوونکي شعر روان او سم لوستلی شي؟
- ايا د شعر په اصلي مفهوم خبرې کولی شي؟
- په لوستل شوي شعر کې د متضادو کلمو ضد له ياده پيدا کولی شي؟
- زده کوونکي ددې وړتيا لري چې د بيتونو د مطلب په هکله خبرې وکړي؟

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د يووالي په هکله څوکرښې وليکي.

## یوولسم لوست

# متشابه کلمې

**موخه:** دمتن سم لوستل، لیکل او د متشابه کلمو په معنا او مفهوم پوهیدل دي.

**هڅوونکې پوښتنې:**

- متشابه کلمې (ورته کلمې) څه ډول کلمې دي؟
- د متشابه کلمو بېلګې څوک ویلی شي؟

**متشابه کلمې:** هغو کلموته وایي چې په لیکلو کې یو بل ته ورته وي خو په معنا کې سره توپیر ولري، لکه په لاندې بیت کې چې لیدل کېږي:-

لکه په دغو جملو کې:

۱. ولې دې له ولې څخه داسې وپوښتل؟

۲. زه تل هغه کوم چې د خبرې تل ته ځان ورسوم.

**ښوونکي ته لارښووني:**

- متن په لوړ اواز و لولئ.
- د متشابه کلمې په اړه معلومات ورکړه او څو متشابه کلمې پر تخته ولیکه!

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. متن ولولئ او د متشابه کلمې تعریف له یاده زده کړئ!
۲. لاندې جملې ولولئ او د هغو کلمو معنا ګانو ته ځیر شئ چې کرښه ورلاندې ایستل شوې ده.
   - دبزګر لور په لوکې مات شو.
   - انارګل زما کینې لور ته ناست دی.
   - توریالي وویل، « چې دا پېټی ډېر سپک دی.
   - سپک سړی د چانه خوښیږي.
   - وړ مې دروند پېټی جګ کړ.
   - دروند انسان د هر چا خوښیږي.
   - بېل د بزګر لپاره ضروري آله ده.
   - اخک د خپلې کورنۍ څخه بېل ژوند کوي.
۳. په لاندې بیتونوکې د کومو کلمو لاندې چې کرښه ایستل شوې ده تاسو یې بله معنا پیدا او په جملو کې یې وکاروئ.

| | |
|---|---|
| سور د تور سره هیڅکله نه جوړیږي | دا قانون د طبیعت دی چې چلیږي |
| خو انسان چې بیا په تور کله تورن شي | خړ به ګرځي بیا هیڅکله نه سپینیږي |

(جلاد حکمتي)

۴. لاندې کلمې ولولئ او بیايې په بیلا بیلو معنا ګانو کې وکاروئ کومې دي؟

**ارزونه:**

- زده کوونکي ویلی شي چې متشابه کلمې څه ډول کلمو ته وایي؟
- ایا زده کوونکو په جملو کې متشابه کلمې وپېژندې او د هرې کلمې په معنا پوه شول؟
- څو تنه زده کوونکي دې په لوستل شوو بیتونو کې د متشابه کلمو معنا ګانې په شفاهي توګه ووايي.

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د متشابه کلمې تعریف په یاد زده کړي او بېلګې دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

## دولسم لوست

# ملګري ملتونه

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل، د ملګرو ملتونو پيژندل او د ملګرو ملتونو د دندو په اړه معلومات ورکول دي.

**هڅوونکې پوښتنې:**

- ايا ويلی شئ چې ملګري ملتونه څه ډول سازمان دی؟
- د ملګرو ملتونو د سازمان اصلي موخه څه ده؟

«ملګري ملتونه» يو نړيوال سازمان دی چې په **۱۹۴۵** ع کال کې يې ديو شمېر هېوادونو له خوا بنسټ اېښودل شوی دی. د دغه نړيوال سازمان د جوړېدو اصلي موخه داده چې د کړکيچونو، جګړواو نښتو مخنيوی وکړي او د بېلابېلو هېوادونو ترمنځ د پوهاوي او سوله ييز ژوند لارې چارې برابرې کړي. دغه سازمان له جوړېدو څخه ترنن پورې د نړۍ په ډېروسيمو کې جګړې او شخړې د پوهاوي له لارې حل کړي. د شخړو او ستونزو و پرحل سر بېره د نړۍ په ګڼ شمېر هېوادونوکې يې ډېرې ودانۍ، روغتيايي او پرمختيايي پروژې هم بشپړې کړې دي. دا سازمان بېلابېلې څانګې لري چې يونيسف اود مهاجرينو عالي کميشنري يې لويې څانګې دي: د مهاجرو عالي کميشنري د نړۍ په زياتو هېوادونو کې دجګړو، طبيعي پېښو لکه زلزلو، سېلابونواو نورو ستونزو له کبله له بې ځايه شوو او بېرته ستنېدونکو خلکو او مهاجرو سره مرسته کوي.
يونيسف د ماشومانو او ځوانانو دښوونې او روزنې او دهغوی د پالنې په برخه کې مرستې کوي. دغه راز دا څانګه ماشومانوته خواړه، روغتيايي درمل او به اونور مواد هم برابر وي.
له دغو دووڅانګو پرته دملګرو ملتونو سازمان نورې څانګې هم لري چې هغه دادي:

۱- د خوړو نړيوال سازمان چې غذايي مواد برابروي او د کرنې او مالدارۍ سازمان چې د کرنې بېلابېل تخمونه او دمالدارۍ چاروته وده ورکوي داسازمان له کروندګروسره مرسته کوي.
۲- د روغتيايي چارو نړيوال سازمان چې په سيمه ييزو صحي چارو کې مرسته کوي.
۳- يونسکو چې د تعليمي، علمي او کلتوري برخو مسؤوليت پر غاړه لري.

**ښوونکي ته لارښوونې:**

- متن په لوړ اواز ولوله!
- د ملګرو ملتونو په هکله دزده کوونکو له سويې سره سم معلومات ورکړه!

## د زده کوونکو فعاليتونه:

۱. لاندې نوې کلمې په چوکاټ کې معنا شوې دي تاسو يې په جملو کې وکاروئ!

| هدف | موخه |
|---|---|
| غذا | خواړه |
| شخړو | جګړو |
| ستونزو | مشکلاتو |
| کړکيچونو | جنجالونو |

۲. يونيسف څه فعاليتونه ترسره کوي؟ په خپلو کتابچو کې يې ځواب په څو کرښو کې وليکئ.

۳. د لاندې جملو تش ځايونه په مناسبو کلمو په خپلو کتابچو کې ډک کړئ.

الف: ملګري ملتونه يو ______ سازمان دی.

ب: ددغه نړيوال سازمان د جوړېدو اصلي هدف دادی چې د کړکيچونو، جګړو، او نښتو _______ وکړي.

ج: د کرنې او مالداري سازمان د _______ تخمونو په برابرولو کې مرستې کوي.

د: يو نسکو د ______ ابداتو څارنه کوي.

**ارزونه:**

- آيا زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- زده کوونکي نوې کلمې په جملو کې کارولی شي؟

## کورنۍ دنده:

په خپلو کتابچو کې د ملګرو ملتونو په هکله څو کرښې مقاله وليکئ!

# دیارلسم لوست

## متلونه

**موخه:** د متن لوستل، لیکل، د متلونو په معنا او مفهوم پوهېدل دي.

**هخوونکې پوښتنې:**

- ستاسو په نظر متل څه ته وايي؟
- څوک کولی شي چې متل ووايي؟

متلونه هغه پراخې مفهوم لرونکې، لنډې او زياتره په وزن برابرې ويناوې دي چې ديوې خبرې د ټينګار او ښکلا لپاره په خبرو کې ويل کېږي او دټولنې د تجربو زيږنده وي . په متل سره ديوې ټولنې فکرونه او دودونه له يوه نسل څخه بل ته او له يوه ولس څخه بل ولس ته ليږدول کېږي او دخبرو ښکلا پرې زيا تيږي او پر مخا مخ لوري سمدلاسه اغېزه کوي. په خلکو کې مشهوره ده چې په هر متل کې د يوه کتاب مفهوم پروت دی:

(څه چې کرې هغه به رېبې)

نړۍ د پټې مثال لري او دانسان ټولې چارې او کړه وړه دتخم پـه څېر دي . انسان چې په دنيا کې هرڅه کوي اوهره چاره چې سر تـه رسوي هرو مرو بـه د خپلوکړو پايله تر لاسه کړي. که يې ښه کړي وي ، نو ښه به ترې اخلي اوکه يې بد کړې وي نو بد حاصل به ترې اخلي.

**ښوونکي ته لارښوونې:**

- متن ولوله!
- د متلونو په هکله د زده کوونکو له سويې سره سم معلومات ورکړه!
- له زده کوونکو څخه وغواړه چې متلونه ووايي.

## د زده کوونکو فعاليتونه:

۱. متن په چوپتيا سره ولولئ!

۲. په لاندې جملو کې متل په نښه کړئ او بيا يې په کتابچو کې وليکئ.

- په يوه ګل نه پسرلی کېږي.
- کوږ بار تر منزله نه رسيږي.
- د اوبو څاڅکي باران جوړوي.

۳. لاندې متلونه ولولئ او مطلب يې په خپلو کتابچو کې وليکئ:

- خدايه لوی مې کړې لويي رامه کړې.
- له لوږې مړ شه خو د منت دارو مه خوره.
- د ورغوي تڼاکه مرغلره ده.
- اول سلام پسې کلام.

**ارزونه:**

- ايا زده کوونکي متن سم لو ستلی شي ؟
- دمتل په معنا او مفهوم پوه شول؟
- د متل په هکله خپل معلومات وړاندې کولی شي ؟
- ايا په دې وپوهېدل چې هر متل ځانته دکارولو ځانګړی ځای لري؟

**کورنۍ دنده:**

که غر لوړ دی په سر يې لار ده ) يعنې څه؟ مطلب يې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# څوارلسم لوست

## څپه (هېجا - سېلاب)

**موخه**: د متن لوستل، ليکل، د څپې په معنا او مفهوم پوهېدل دي.

**هڅوونکې پوښتنې**:

- ويلی شئ چې څپه يا هجا څه ته وايي؟
- آيا تاسې کومه کلمه په څپو اړولی شئ؟

(څپه، هېجا يا سېلاب) د اوازونو دبند ښت له مخې ديو ي کلمې بېلولو ته هيجا وايي . ديوې کلمې دڅپو شمېر د همغې کلمې د غږونو په شمېر پورې تړلی دی. لکه په لاندې کلمو کې مثالونو ته ځيرشئ.

پښتانه – درې برخې يعنې پښ / تا /نه درې څپې لري، (بزګر) – دوې برخې يعنې بزګر دوې څپې لري (بڼ – يوه برخه يعنې يوه څپه لري.

لاندې متن ولولئ! هغو کلموته ځير شئ چې کرښه ورلاندې اېستل شوې ده. تاسو يې هيجا کړئ!

نن زلمي او دده خور ملالۍ دښوونځي د اداري په لارښوونه ګډ کار وکړ. له نورو زده کوونکو سره يې دښوونځي چاپېريال او ټولګي پاک کړل.

زده کوونکي له خپلو ښوونکو سره په ډېره مينه دښوونځي په پاکوالي بوخت وواو په پای کې يې خپل ښوونځی پاک او سوتره کړ، دزلمي او ملالۍ دا کار ډېر خوښ شو. کله چې دوی له کار څخه وزګار شول او بېرته کورته راغلل، نو داکيسه يې خپلې مور او پلار ته وکړه .

پلار يې هغوی ته وويل: بچيانو داډېر ښه کار دی موږ بايد خپل کور ، کلی، ښوونځی او خپل هېواد دمتوپه زور پاک او سو تره وساتو او هڅه وکړو چې د کور کلي او هېواد په سمسورتيا کې په ګډه نه ستړي کېدونکي هلې ځلې وکړو چې زموږ و بچاړ هېواد بيا ودان او سمسورشي او زموږ خلک له بد بختۍ څخه وژغورل شي.

**ښوونکي ته لارښوونې:**

- ښوونکی دې متن په لوړ اواز ولولي.
- ښوونکی دې دخپې په اړه معلومات ورکړي او دکلمو دخپو یا هیجا په کارولو کې دې زده کوونکي وهڅوي چې دکلمو هیجاوې مشق او تمرین کړي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. متن ولولئ!
۲. زده کوونکي دې په ډلو کې لاندې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې ووایي چې څو خپې لري.

سر | مخ | لاس | قلم | کتابچه | پوهنځی

ړنا | ورځ | شپه | ټوله | درملتون

کړاو | لار | څوکۍ | پښې | تتار | لوګری

ورېمه | ښوونکی | مېوه | منه | ختیکی

۳. زده کوونکي دې یو بل ته څو کلمې املا ووایي او بیا دې کلمې په خپو واړوي او خپې دې وشمېري.

**ارزونه:**

- له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ چې څپه یا هیجا څه ته وایي؟
- زده کوونکي دې په خپله خوښه څو کلمې په کتابچوکې ولیکي بیادې په خپو واړوي.

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د کارتونو لاندې کلمې په خپلو کتابچو کې په خپو واړوي. خپې دې وشمېري اوبیا دې په جملو کې وکاروي.

شبدې | سپین | ښایست | خوښ | ودان

## پنځلسم لوست

# بشر دوستي

**موخه**: د متن لوستل، ليکل او دبشر دوستۍ په مفهوم پوهېدل دي.

**هڅوونکې پوښتنې**:

- ويلی شئ چې بشر دوستي څه ته وايي؟
- ايا تاسې له بې وزلو سره د خپل توان په اندازه مرسته کوئ؟ او ولې؟

څرنګه چې انسان په ټولنيز چاپېريال کې اوسيږي او په کليو ، باندو او ښارونو کې ژوند کوي بايد په ټولو چارو کې له يو بل سره ، همکاري او مرسته وکړي. دستونزو او کړاوونو په وخت کې خوا خوږي ولري ، که چېرې يو ناروغ ووينې هغه بايد سمدلاسه روغتون ته ورسوي. که ددرملو داخيستلو پيسې ورسره نه وي، د خپل وس اوتوان په اندازه دې نغدې پيسې ورکړي. همداراز د خپلو خپلوانو او ګاونډ يانو د حال اواحوال څخه ځان خبروي او په ډېره مينه دې ترې دروغ ناروغ پوښتنه وکړي. په کشرانو دې شفقت او رحم کوي او دمشرانو درناوی دې خپله انساني دنده وبولي، څرنګه چې موږ انسانان يو ، دا دانسانيت دنده ده چې دنړۍ د ټولو انسانانو سره مينه خپله بشري فريضه وبولو .

هرانسان دقدراو درناوي وړ دی. ناپوهو کسانو ته دسمې لارې لارښوونه وکړو. د غچ اخيستو په ځای د بخښنې روحيه په ځان کې وروزو ، ځکه چې اصلي خوښي او نېکمرغي په بخښنه کې ده نه په غچ اخيستلو کې. له هر انسان سره بايد په خوږو الفاظو خبرې وکړو.

دخپل بدن په وينه او رګونو کې انسان دوستي وروزو ، ځکه داد انسانيت تر ټولو غوره مقام دی. دانسان ژوند يوازې ددې لپاره نه دی چې خپل ځان سوکاله کړي ، بلکې دنورو سوکالۍ ته هم په ډېر ارزښت قايل شي، لنډه دا چې د انسانيت او بشر دوستي له خپل همنوع سره د زړه له کومې خواخوږي ده، موږ بايدد ټول بشر يت په غم او ښادۍ کې خپل ځان شريک وبولو ، دا ځکه چې له نورو سره مينه د خپل ځان سره د مينې او محبت معنا لري.

## ښوونکي ته لارښووني:

- متن ولوله!
- نوي کلمې پرتخته ولیکه او معنا یې کړه!
- په زده کوونکو باندې دمتن څو جملې املاء ولیکه!

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن د یو بل په مرسته په چوپتیا سره ولولي.

۲. دلاندې کلمو مترادف له یاده په خپلو کتابچو کې ولیکئ!

| تولنیز | چارو | شفقت | چاپېریال | کړاوونو | درناوی |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| ګټې | ګاونډیانو | دنده | غچ | سوکاله | |

۳. په لاندې کلمو کې د ربط توري پیدا او په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ.

| کې | او | په | وس | هغه | څخه |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| چې | ورکړي | یو | مرسته | سره | هم |

۴. په خپلو کتابچو کې لاندې قوسونه په مناسبو کلمو ډک کړئ.

الف: هر انسان دقدر او درناوي وړ________. (ده ، دي ، دی)

ب: له هرانسان سره په کړووړوکې په خوږو الفاظو خبرې________. (وکړو ، کول)

## ارزونه:

- ایا زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- دبشر دوستۍ په معنا او مفهوم پوه شوي او خبرې کولی شي؟
- دمترادفو کلمو هم معنا یې له یاده پیدا شوې؟
- په ورکړل شو یو کلمو کې یې د ربط توري په ګوته کړل؟

## کورنۍ دنده:

دبشر دوستۍ په هکله په خپلو کتابچو کې څو کرښې ولیکئ!

# شپاړلسم لوست

## آزادي

**موخه:** د شعر لوستل ، ليکل او د آزادي په هکله معلومات ورکول او د نويو کلمو په معنا پوهېدل دي.

**هڅوونکي پوښتني:**

- تاسي د آزادۍ په معنا او مفهوم پوهيږئ؟
- آيا د آزادۍ په هکله څه ويلی شئ؟

| | |
|---|---|
| په شړۍ کې ښه يم زه آزاد فقير | نه وربښمو کې چنجي غوندې اسير |
| په خامتا کې حُر آزاد ښه دی سل ځله | له غلامه چې لباس يې وي حرير |
| د وژغنو په کيږدۍ کې که آزاديم | يو ويښته به يې ور نکړم په کشمير |
| په ويجاړه کې مرغه ځاله کې خوښ وي | په قفس کې د سرو زرو وي زهير |
| چې مرغان په هوا وينم چرګ په ځمکه | راته ياد د اسارت شي بد تاثير |
| همېشه اسير مرغه دی خوړل شوی | او ښکې يې بالښت د خان او مير |

له لينديۍ د اسارته چې څوک خلاص شي
بې وزره په هوا ځي لکه تير

(ګل پاچا اُلفت)

**ښوونکي ته لارښوونې:**

- شعر ولوله! او معنا يې کړه!
- د شعر په مطلب باندې معلومات ورکړه!

**دزده کوونکو فعاليتونه:**

۱. زده کوونکي دې شعر ولولي.

۲. زده کوونکي دې د لوستل شوي شعرمطلب په خپلو کتابچو کې په نثر واړوي.

۳. لغتونه او معناګانې:

فقير - غريب

اسير - بندي

حُر - آزاد

زهير - ناتوانه

**ارزونه:**

- آيا زده کوونکی شعر سم لوستلی شي؟
- د موضوع په مطلب پوه شول؟
- دشعر په مطلب خبرې کولی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې لاندې کلمې په خپلو کتابچو کې په جملو کې وکاروي.

(اسيرـ ويجاړهـ اسارتـ زهيرـ تاثير ـ حرير)

# اوولسم لوست

## د نومونو جوړښت (ساده نوم)

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل دساده نوم پیژندل او په جملو کې یې کارول دي.

**هڅوونکې پوښتنې**:

- ساده نوم څه ډول نوم ته وايي؟
- کولی شئ چې څو ساده نومونه ووايئ؟

**ساده نوم**: هغه دی چې له یوې واحدې کلمې څخه جوړ شوی وي لکه:
کتاب، قلم، زړه، خندا.

لاندې متن ولولئ! هغه ساده نومونه چې کرښه ورلاندې ایستل شوې ده په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ.

### په کلي کې ژوند

په اوړي کې د کلي باغونه ښکلي اوخوندورې مېوې لري. بریالی د رخصتیو په ورځو کې له خپل پلار سره کلي ته ځي، هلته په خپل بڼ کې له پلار سره کار کوي. دراتګ په وخت کې دخپلې مورلپاره: منې، ناک او زردآلو راوړي.
په کلیو کې ژوند خوندکوي. ځکه دکلي چاپېریال سمسور وي او دخلکو ګڼه ګونه هم زیاته نه وي باغونه او شنه چمنونه پکې وي. لښتي اوچینې هرې خواته بهیږي چې انسان یې له لیدلو څخه خونداخلي. په کلیو کې ښځې له خپلو مېړونو سره د کرنې په چارو کې پوره مرسته کوي.

ښوونكي ته لارښووني:

- متن په مناسب اواز ولوله!
- دساده نوم بېلگې په تخته وليکه او دهغو په هکله معلومات ورکړه!
- د څو جملو املاء په زده کوونکو باندې وليکه!

## د زده کوونکو فعاليتونه:

۱. متن د يوبل په مرسته په چوپتيا ولولئ!

۲. لاندې کلمې په خپلو کتابچو کې په جملو کې وکاروئ!

«مور ، کلی ، بڼ ، کار ! پلار »

۳. لاندې شعر ولولئ ، بيايې په خپلو کتابچو کې وليکئ اوتر ساده نومونو لاندې يې کرښه وکاږئ

دغريب کاله ماشوم دی هر هلک يو ځل وهلی نازيې هيڅ نه دی ليدلی په ژړاکورته راغلی

چا اخيستی غېږکې نه دی له سپيروخاورونه کله کور او کلي کې بې قدره خوار اوزار دی اوسپدلی

گل پاچا الفت

۴. دلوستل شوي شعر مطلب په خپلو کتابچو کې په نثر وليکئ!

ارزونه:

- ايا زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- دساده نوم په معنا او مفهوم پوه شول؟
- ايا زده کوونکي کولی شي چې له ياده نور ساده نومونه ووايي؟

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې څو ساده نومونه وليکي، بيا دې يې په جملو کې وکاروي.

## اتلسم لوست

# ګيدړه

**موخه:** ددې کيسې لوستل او ليکل، اوددکيسې په مفهوم پوهېدل دي.

**هڅوونکې پوښتنې:**

- تاسې د ګيدړو په هکله کيسې اوريدلې دي؟
- د هر کار د پيل لپاره تاسې د هغه پايله په پام کې نيسئ؟



يوه ګيدړه په يوه غره کې اوسېده، دې هيله درلوده چې يوه ورځ باغ ته د انګورو د خوړلو لپاره لاړه شي. ددې هيلې د پوره کولو لپاره له غره څخه د باغ په لور را روانه شوه . سهار مهال په تياره کې باغ ته راورسېده . باغوان له باغ څخه ډېر جګ ديوال ددې لپاره را تاوکړی و چې باغ يې له خلکو او ځارويو څخه خوندي پاتې وي.

ګيدړه تر باغ چاپېره وګرځېده. غو ښتل يې چې له ديوال څخه باغ ته واوړي . خو په دې کار بريالۍ نه شوه. په پای کې يې دديوال په بېخ کې يو سوری وليد چې له دې سوري څخه باغوان خپل باغ او به کاوه.

ګيدړه له دې سوري څخه په ډېر زحمت باغ ته ننوته. کله چې يې په باغ کې دانګورو ځوړند وږي په تاک کې وليدل. له خوښۍ نه يې ټوپونه ورته ووهل او په خوړلو يې پيل وکړ.دو مره انګور يې وخوړل چې له خپلې خېټې څخه يې د اوبو مشک جوړ کړ.

د سهار رڼا خپره شوه .ګيدړې وغو ښتل چې له راغلي سوري څخه بېرته ووځي خو دومره انګور يې خوړلي وو چې له سوري څخه وتل ورته ناممکن شوی وو. له ځان سره يې وويل چې بله چاره نشته، بې له دې چې بېرته وږې شي او ووځي.

د سهار لمر خپلې وړانګې په ټولو ځايونو خپرې کړې ، باغوان له خپل سپي سره باغ ته را روان شو. کله چې باغ ته را ورسېد د باغ دروازه يې خلاصه کړه. ګوري چې ګيدړه باغ ته راغلې ، سپي چې ګيدړه وليده نو ورمنډې يې کړې او په ګيدړې يې حملې پيل کړې او له پښويې وغورځوله . ګيدړې دژوند په وروستيو شيبو کې

داسې وویل :کاشکې مې لومړی د وتلو لار سنجولې وای او بیا باغ ته ننوتې وای . که مې لومړی دا فکر کړی وای اوس به دا کار نه را باندې کېده.

بښوونکي ته لاربښووني:
- دمتن د مطلب په هکله معلومات ورکړه!
- ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې دکیسې په مطلب دې خبرې وکړي.

د زده کوونکو فعالیتونه:

١. زده کوونکي دې د یو بل په مرسته کیسه په چو پیتا سره ولولي.
٢. دلاندې مترادفو کلمو هم معنا له چوکاټ څخه پیدا او په خپلوکتابچو کې یې د کلمو تر څنګه ولیکئ.

| محفوظ- امید- لاره سنجول- بد- د اوبو راوړلو ظرف چې ژی هم ورته وایي. |
|---|

الف : هیله ______
ب: مشک ______
ج: خوندي ______

٣. دمتن اصلی مطلب په لاندې جملو کې وښیئ.
الف: په ډېر تکلیف سره د ګیدړې ننوتل سوري ته.
ب: له سوري څخه بیرته وتل د ګیدړې لپاره ناشونی کار و.
ج: لومړی باید سړی د کار انجام ښه وسنجوي بیا هغه کار وکړي.

۴. لاندې جملې په خپلو کتابچو کې ولیکئ، بیایې د چوکاټ په مناسبو کلمو سره بشپړې کړئ.

| ورته- یې- چې- روانه- مې |
|---|

الف: غوښتل ______ چې له دېوال څخه باغ ته واوړي.
ب: له دې سوري څخه وتل ______ نا ممکن شوي وو.
ج: له غره څخه د باغ په لور را __________ شوه.
د: که ______ لومړی مې دا فکر کړی وای، اوس به په دې سرنوشت نه وم اخته شوي .

ارزونه:
- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- آیا دوی د کیسې په اصلي مطلب پوه شول؟
- آیادمترادفو کلمو هم معنا یې له چوکاټ څخه پیدا کړه؟

کورنۍ دنده:
په خپلو کتابچو کې د لوستل شوې کیسې مطلب په خو کرښو کې ولیکئ!

## نولسم لوست

# مرکب نوم

**موخه:** د متن سم لوستل، ليکل، د مرکب نوم پېژندل او په جملو کې يې کارول دي.

### هڅوونکې پوښتنې:

- د مرکب نوم په هکله معلومات لرئ؟
- له تاسو څخه په دې هکله څوک مثال ويلی شي؟

مرکب نوم: هغه دی چې له دوو خپلواکو کلمو څخه جوړ شوی وي لکه: کتابتون، پرهارپاڼه، سپين بولدک، جلال آباد، نوی ښار، ګلخانه، پکتيا کوټ، ميدان ښار.

په لاندې جملو کې هغو کلمو ته ځير شئ چې کرښه ترې لاندې ايستل شوې ده.

۱- د بلخ پوهنتون يو ښکلی کتابتون لري.

۲- سپين بولدک د کندهار په ولايت کې دی.

۳- په جلال آباد کې د نارنجو ونې ډېرې دي.

۴- زما ورور په نوي ښار کې اوسيږي.

۵- د حبيب کور په ګلخانه کې دی.

۶- پرهار پاڼه د يو بوټي نوم دی.

په پورتنيو جملو کې (مزار شريف، سپين بولدک، جلال آباد، نوی ښار، ګلخانه او پرهار پاڼه) مرکب نومونه دي.

## ښوونکي ته لارښووني:

- متن ولوله او د مرکب نوم په هکله معلومات ورکړه!
- د هر ګروپ زده کوونکي وهڅوئ چې په خپلو ګروپونو کې نور مرکب نومونه پیدا کړي او بیا دې هر ګروپ خپل مرکب نومونه په تخته ولیکي.

### د زده کوونکو فعالیتونه:

١. زده کوونکي دې متن ولولي.

٢. جملې دې ولولي او مرکب نومونه دې په کې په ګوته کړي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

- زرخانګه زما د ماما لور ده.
- بادام ګل د ماین لټوونکو په دفتر کې دنده لري.
- سره مخه یو ډول ناروغي ده.

په لاندې ورو چوکاټونو کې کلمې درکړل شوي دي، تاسو دا ړوندو کلمو په یو ځای کولو سره مرکب نومونه جوړکړئ او په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ.

| سپین | پښتون | زر | کوټ | بولدک | درمل |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| ګل | غوټۍ | جمال | ښار | نوی | خانګه |

٣. لاندې مرکب نومونه په جملو کې وکاروئ.

- میرویس میدان - بریکوټ
- زرغون ښار - سپین غر

### ارزونه:

- آیا زده کوونکو مرکب نوم وپېژانده؟
- د مرکب نوم نورې بېلګې له یاده ویلی شي؟
- په جملو کې یې مرکب نومونه وپېژندل؟
- د چوکاټونو له ورکړل شوو کلمو څخه یې مرکب نومونه جوړکړای شول؟

### کورنۍ دنده:

لاندې مرکب نومونه په جملو کې وکاروئ!

(سپین ګل، ګل غوټۍ، وزیر اکبر خان، میوند واټ)

## شلم لوست

# اشر (ګډ کار)

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د ګډ کار د ګټې په ارزښت پوهېدل دي.

**هڅوونکې پوښتنې:**

- آیا کله مو په ګډو کارونو کې برخه اخیستې ده؟
- ویلی شئ چې ګډ کار څه ګټې لري؟



سباوون د خپلې دري جریبه ځمکې د کرلو لپاره ډېر پرېشان و، ځکه د کروندې مهال په تېرېدو و، ځمکه یې په خپله نه شوه کرلی نو د خپلې ماندینې (تورپیکۍ) سره یې مشوره وکړه. هغې ورته وویل چې د کلي ځوانان ورته په اشر وغواړه. سباوون هم دخپلې ماندینې خبره ومنله او دکلي زلمیان یې د جمعې په ورځ د اشر لپاره را وغوښتل. سباوون نورو ځلمیانو سره سهار وختي د ځمکې په اړولو پیل وکړ. ترغرمې پورې یې ځمکه واړوله، پټي او پولې یې جوړې کړې. تورپیکۍ د غرمې لپاره ښه خوندوره ښوروا پخه کړې وه. د کلي ځلمیانو په ګډه سره ډوډۍ وخوړه او د مازیګر تر لمانځه پورې یې په پټیو کې راز راز سابه وکرل.

سباوون د تورپیکۍ له مشورې څخه ډېر خوښ و. د شپې چې سباوون او ماشومان یې د سترخوان ته د ډوډۍ خوړلو لپاره کښیناستل، سباوون خپلو ماشومانو ته وویل: ((ګډ کار زمونږ یو ډېر ښه دود دی. زه یوازې وم، ځمکه مې نه اړولی شوه او نه کرلی)) خو ګاونډیانو را سره مرسته وکړه. زه به په خپله هم د ګاونډیانو په اشرونوکې هرومرو برخه اخلم. د دې زامنو هم وویل کله چې ځوانان شوو نو موږ به هم له خپلو ګاونډیانو سره په کارونو کې برخه واخلو.

## ښوونکي ته لارښووني:

- ښوونکی دي متن ولولي او د درس مطلب دي له زده کوونکو څخه وپوښتي.
- ښوونکی دي د اشر د ګټو په هکله معلومات ورکړي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې د ګډ کار د ګټو په هکله خبرې وکړي.

۲. زده کوونکي دې نوې کلمې په جملو کې وکاروي.

مهال - وخت   زلمی - ځوان   خوندوره - مزه دار   اشر- ګډ کار

۳. لاندې نیمګړې جملې په مناسبو کلمو سره په خپلو کتابچو کې بشپړې کړئ.

سباوون د خپلې درې جریبه ځمکې د کرلو له پاره ډېر ______________ و.

سباوون د کلي ځلمیان د جمعې په ورځ ___________ ته را وغوښتل.

۴. لاندې کلمې په کتابچو کې ولیکئ او بیا د ساده نومونو لاندې کرښه وکاږئ.

سباوون- ځمکې- کلي- خوښ- ځوانانو- کار- مرسته- اشر.

## ارزونه:

- آیا زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- زده کوونکو د ګډ کار د ارزښت او ګټې په هکله پوهه ترلاسه کړه؟
- آیا زده کوونکي کولی شي چې د ګډکار په ارزښت خبرې وکړي؟

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د خپل ګډ کار چې په کور، ښوونځي او یا په کوم بل ځای کې یې تر سره کړې وي، څو کرښې ولیکي.

## یوویشتم لوست

# د کونړ سیند

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د کونړ د سیند په هکله معلومات ورکول دي.

**هڅوونکې پوښتنې**:

- آیا د کونړسیند مولیدلی دی؟
- ویلی شئ چې له دې سیند څخه خلک کومې ګټې ترلاسه کوي؟

د کونړ سیند د هندوکش له غرونو څخه سر چینه اخلي. د چترال له خوا د بریکوټ په سیمه کې کونړ ته داخلیږي او له دې ځایه د شیګل او اسمار پر لاره د دنګو دنګو غرونو په منځ کې له دم کلي یا اسعد آباد څخه تیر او مخ پرجلال آباد بهیږي. له دغه سیند سره د کامدیش او پیچ دري سیندونه هم یوځای شوي دي. د کونړ د زراعتي ځمکو پر خړوبولو سر بیره کونړ ته یې ځانګړې ښکلا وربخښلې ده.

په دې سیند کې ډول ډول کبان او په شګو کې یې د سرو او سپینو زرو ذرې شته، چې ډلې ډلې ښکاریان د کبانو نیولو او زرلټوونکي د زرو په راغونډولو پسې ورځي. دا سیند د بریښنا د تولید او دځمکو د خړوبولو لپاره ډیرې اوبه او دبندونو جوړولو لپاره مناسب ځایونه لري.

### ښوونکي ته لارښوونې:

- د کونړ سیند په هکله دې معلومات ورکړي.
- نوې کلمې دې د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې یې کړي.

### دزده کوونکو فعالیتونه:

۱. متن په چوپتیا سره ولولئ!
۲. نوې کلمې په جملو کې وکاروئ.

پیل     شروع     کبان     ماهیان     ښکلا     ښایست

۳. دلاندې جملو تش ځایونه په مناسبو کلمو سره په خپلو کتابچو کې بشپړ کړئ.

دکونړ سیند هندوکش له غرونو څخه ________________ کیږي.

دکونړ سیند ډېر ______________لري.

د کونړ سیند ډېره زراعتي ځمکه __________________ .

د کونړ سیند د کونړ ولایت ته زیاته _______________ ورکړي.

ارزونه:

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- آیا د متن د مطلب په هکله خبرې کولی شي؟
- د نویو کلمو په معنا پوه شوي دي. او نوې کلمې په جملو کې کارولی شي؟

### کورنۍ دنده:

د کونړ سیند په هکله هغه څه چې مو زده کړل، په خپلو کتابچو کې څو کرښې ولیکئ!

# دوه ویشتم لوست

## مشتق نوم

موخه: د متن سم لوستل، لیکل، دمشتق نوم پېژندل او په جملو کې یې کارول دي.

**هڅوونکې پوښتنې:**

- آیا تاسو د مشتق نوم اوریدلی دی؟
- مشتق نوم څه ډول نوم ته وايي؟
- کولی شئ چې د مشتق نوم بېلګې ووایئ؟

**مشتق نوم:** هغه دی چې له یوې ریښې سره مختاړی یا وروستاړی ونښلي او نوې کلمې ترې جوړې شي یا مشتق یا جوړ شوی نوم، د یوې خپلواکې (مستقلې) ریښې سره د لاحقې او سابقې په نښلولو جوړېږي. لکه: د (روغتیا) مشتق نوم د یوې مستقلې ریښې (روغ) او د (تیا) وروستاړی څخه جوړ شوي دی.
د (راتګ) مشتق نوم د (را) سابقی او د (تګ) ریښې څخه جوړ شوی دی.
لاندې جملې ولولئ او هغو کلمو ته پام وکړئ ترکوموکلمو لاندې چې کرښه کښل شوې ده.

- زما خورځه ناروغه ده.
- ښوونکې د ښوونځي په میدان کې زده کوونکو ته وینا کوي.
- د تورګل پلار د نساجۍ په فابریکه کې کارګر دی.

په پورتنیو کلمو کې (خورځه، زرګر، کارګر، مشتق نومونه دي چې د یوې ریښې څخه د مختاړو اووروستاړو په نښلولو سره جوړ شوي دي. په لاندې توګه:

۱. د (خورځه) مشتق نوم چې د (خور) دریښې او د (ځه) د لاحقې په یو ځای کیدو سره جوړ شوی دی.
۲. د (زرګر) مشتق نوم د (ښووني) د ریښې او د (ګر) د لاحقې په نښلولو سره جوړ شوی دی.
۳. د (کارګر) مشتق نوم د (کار) دریښې او د (ګر) د لاحقې یا وروستاړي څخه جوړ شوی دی.

**ښوونکي ته لارښوونې:**

- ښوونکی دې د مشتق نوم او د هغه د بېلګو په اړه لنډ معلومات و رانديې کړي.
- ښوونکی دې د مشتق نوم بېلګې له زده کوونکو څخه وپوښتي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي.

۲. دلاندې جملو تش ځایونو لپاره په قوسونو کې ساده نومونه او مشتق نومونه د رکړل شوي دي. تاسې له دې کلمو څخه یوه مناسبه کلمه پیدا او جملې وربانديې بشپړې کړئ.

(کتاب ، کتابدار باغ، باغوان ګل، ګلدانی)

د کتابتون __________ باید په خپل وخت وروړل شي.

________________ باید کتابونه په ټاکلي ځای کې کېږدي.

________________ د ونو په ساتلو او ډګلانو په کرلو ښه پوهیږي.

په ______________ کې رنګا رنګ ګلان او ونې وي.

د ______________ ساتنه ډېر مهارت غواړي.

د ژمي په موسم کې ګلان په ___________ کې کېښول او ساتل کېږي.

۳. لاندې متن ولولئ او په دې کې مشتق نومونه پیدا او په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ.

افغانستان یو غرنی هېواد دی. دا ښکلی هېواد د ونو او غرونو د لرلو له کبله ښه هوا لري.
د دې وطن له هرې سیمې څخه راز راز غلې او مېوې لاس ته راځي.
په افغانستان کې ډول ډول طبی بوټي شنه کېږي.

**ارزونه:**

- آیا زده کوونکو د مشتق نوم وپېژانده؟
- د مشتق نوم په اړه نورې کلمې له یاده ویلی شي؟
- دوی وکولی شول چې نیمګړې جملې په مناسبو مشتقو نومونو او ساده نومونو سره بشپړې کړي؟

**کورنۍ دنده:**

دا لاندې د مشتق دنومونو رېښې او لاحقې سره بېلې کړئ او په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ او بیا یې په جملو کې وکاروئ.

(ښکاري، سیلانیان، لوګړی)

## درویشتم لوست

# موزیم

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل، د موزیم په معنا او مفهوم پوهیدل او د موزیم د لرغونو آثارو د ارزښت په هکله معلومات ورکول دي.

**هڅوونکې پوښتنې:**

- موزیم کوم ځای ته وايي؟
- تاسې کله موزیم لیدلی دی؟
- هلته مو څه شی لیدلي دي؟

موزیم هغه ځای ته وايي چې د یوه هېواد ارزښتناک او د ډېرو زمانو لرغوني آثار په کې ساتل کېږي چې له یوه ځایه بل ځای ته د لېږدولو وړ وي. د تېرو زمانو د خلکو له خوا هغه جوړ شوي شیان چې د اغوستلو، کارولو، خوړلو، او سپدلو او لمانځلو لپاره یې جوړ کړي وي د تاریخي یا لرغونو آثارو په نامه یادیږي.



زموږ ګران هېواد افغانستان د نړۍ یو خورا لرغونی هېواد دی او ډېر لرغونی او زوړ تاریخ لري. تر اسلام د مخه په دې خاوره کې نور مذهبونه او ادیان لکه: زردشتي او بودايي رواج وو. ددې مذهبونو زیات آثار تر اوسه پورې زموږ په هېواد کې موندل کېږي. لرغوني آثار دیو هېواد د تاریخ د یوه سند حیثیت او ارزښت لري. د نړۍ خلک د خپلو تاریخي آثارو قدر کوي.

موزیم د تاریخي پېښو او واقعاتو د معلومولو او اټکل لپاره یوه غوره وسیله ده. او دتېر وخت د ژوند بڼه، دود او د ستور په ډاګه کوي.

په افغانستان کې د هېواد د لرغونو آثارو د ساتلو په خاطر یو موزیم د کابل ښار په دارالامان کې موقیعت لري.دا موزیم په آسیا کې له مشهورو موزیمونو څخه ګڼل کېږي. لازمه ده چې موږ دموزیم په ارزښت وپوهېږو او په هغه کې د موجودو لرغونو آثارو ساتنه وکړو.

### ښوونكي ته لارښووني:

- متن دې ولولي.
- د موزيم د ارزښت په هكله دې معلومات وركړي.
- له زده كوونكو څخه دې وغواړي چې دموزيم د ارزښت په هكله خبرې وكړي.
- د متن څو جملې دې په زده كوونكو باندې وليكي.

### دزده كوونكو فعاليتونه:

۱. متن دې ولولي.

۲. لاندې كلمې په كتابچو كې وليكئ! بيا د صفت تر كلمو لاندې كرښه وكاږئ.

(ګران، ډير، هېواد، ارزښت، قدر، غوره، آثارو، مشهورو).

۳. دلاندې كلمو، ضد پيدا او په خپلو كتابچو كې يې وليكئ!

الف: زوړ

ب: اسلام

ج: زيات

د: قدر

۴. پوښتني:

- موزيم كوم ځاى ته وايي؟ ځواب يې په كتابچو كې وليكئ.

۵. لاندې جملې په كتابچو كې وليكئ! بيا يې تش ځايونه په مناسبو كلمو سره بشپړ كړئ!

الف: د كابل موزيم ډېر ___________ آثار درلودل.

ب: زموږ ___________ هېواد افغانستان د ________ يو خورا لرغونى هېواد دى.

### ارزونه:

- زده كوونكي متن سم لوستلى شي؟
- د موزيم په هكله يې پوهه ترلاسه كړه؟
- آيا زده كوونكي د موزيم او دهغه د ارزښت په هكله خبرې كولى شي؟
- په وركړل شوو كلمو كې يې د صفت كلمې پيدا كړې؟
- د متضادو كلمو ضد يې پيدا كړى؟

### كورنۍ دنده:

زده كوونكي دې د موزيم د ارزښت په اړه په خپلو كتابچو كې څوكرښې وليكي.

## څلر ویشتم لوست

# د بُست کلا

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، د بُست د کلا په هکله معلومات ورکول دي.

**هڅوونکې پوښتنې**:

- څوک ویلی شي چې د بُست کلا په کوم ځای کې ده؟
- ستاسو په فکر د بُست کلا به کومو بادشاهانو جوړه کړې وي؟

وایي چې غزنوي پاد شاهان به په ژمي کې د هلمند بُست ته تلل. په بُست کې یوه غونډۍ وه. د دې غونډۍ پر سر غزنوي پادشاهانو یوه لویه او ښکلې کلا جوړه کړې وه چې څلورو خواوو ته یې لوی لوی برجونه درلودل. د دې غونډۍ په لمن کې بازار، کاروان سرایونه، حمامونه او لوی جوماتونه جوړ شوي وو. خواوس هغه ښکلی ښار وران دی ځکه دا ښار چنګېز او تېمور وسوځاوه. چې اوس د بُست د ښار یوازې یوه دروازه آباده پاتې ده چې پنځه ویشت متره اوږدوالی لري. دا دروازه په یوولسمه میلادي پېړۍ کې په خورا مهارت او ښکلې بڼې جوړه شوې ده. چې شته والی یې زموږ په تاریخي آثارو کې شمېرل کېږي.



نو لازمه ده چې موږ د خپل ګران هېواد افغانستان په زړه پورې تاریخي آثار د زړه له کومې خوندي وساتو او هېچا ته دا اجازه ور نکړو چې دا ملي شتمني له منځه یوسي.

**ښوونکي ته لارښووني:**

- د بُست کلا په هکله دې خبرې وکړي.
- ښوونکی دې د متن څو جملې پر زده کوونکو باندې املاء کار وکړي.

**دزده کوونکو فعالیتونه:**

۱. زده کوونکي دې متن ولولي.
۲. زده کوونکي دې دبُست کلا په هکله د ټولګي په مخکې خبرې وکړي او داسې نور تاریخي ځایونه دې په تخته ولیکي.
۳. د لاندې کلمو، ضد د چوکاټ څخه پیدا او د کلمو تر څنګ یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ!

| | | |
|---|---|---|
| لویه | -------- | اوړی ــ وړه ــ آباد |
| وران | -------- | بدرنګ ــ |
| ښکلا | -------- | |
| ژمی | -------- | |

۴. لاندې پوښتنو ته ځوابونه ورکړئ!

- غزنوي پادشاهانو په بُست کې څه شی جوړ کړي و؟
- د بُست کلا چا وسوزوله؟
- د بُست کلا دروازه څومتره اوږدوالی لري؟
- د بُست دروازه په څویمه میلادی پېړۍ کې په خورا مهارت او ښکلي بڼه جوړه شوې وه؟

۵. لاندې نیمګړې جملې په خپلو کتابچو کې ولیکئ او په مناسبو کلمو سره یې بشپړې کړئ.

بُست په ________________ کې یو ځای دی.
بُست کې ____________ یوه لویه کلا جوړې کړې ده.

**ارزونه:**

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- آیا زده کوونکي په دې پوه شول چې د بُست کلا په کوم وخت کې او دکومو پادشاهانو له خوا جوړه شوې ده؟

**کورنۍ دنده:**

لاندې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکئ او بیا یې په جملو کې وکاروئ!

(بُست، غزنوي، غونډۍ، کلا، ښار)

## پنځه ویشتم لوست

# د پښتو ژبې توري

**موخه:** د پښتو ژبې د تورو سم لوستل، لیکل او دتورو په هکله معلومات ورکول دي.

**هڅوونکې پوښتنې:**

- ویلی شئ چې د پښتو ژبې ټول الفبا (توري) څو دي؟
- پوهېږئ چې کوم توري د پښتو اصلي توري دي؟

د پښتو ژبې الفبا څلور څلوېښت توري لري لکه:

آ ـ ا ـ ب ـ پ ـ ت ـ ټ ـ ث ـ ج ـ ح ـ خ ـ څ ـ
ځ ـ د ـ ډ ـ ذ ـ ر ـ ز ـ ړ ـ ژ ـ ږ ـ س ـ ش ـ
ښ ـ ص ـ ض ـ ط ـ ظ ـ ع ـ غ ـ ف ـ ق ـ ک ـ ګ ـ
ل ـ م ـ ن ـ ڼ ـ و ـ ه ـ ی ـ ې ـ ۍ ـ ئ ـ ي ـ

په دغو تورو کې (۲۲) توري د پښتو او فارسي تر منځ ګډ دي او نور اته توري یوازې په پښتو کې راځي چې هغه دادي:

ټ ـ ډ ـ ړ ـ څ ـ ځ ـ ږ ـ ښ ـ ڼ

په دغو څلورڅلوېښت تورو کې (۲۲) توري چپ او څلور نور کومکي توري دي.

په پښتو کې د عربي ژبې دغه لس توري هم په مستعار ډول کارول کېږي.

ث ـ ح ـ ذ ـ ص ـ ض ـ ط ـ ظ ـ ع ـ ف ـ ق

خو د پښتو په کلمو کې راځي او که په کومه کلمه کې راشي نو هغه به اصلاً پښتو نه وي.

د پښتو د الفبا بېلګې په کلمو کې:

آسمان، اس، باغ، پلار، توت، ټولګی، جامې، څوک، ځراغ، ختکی، ځمکه، دېوال، ډوډۍ، ړوند، زنه، زلمی، سترګه، شپه، ښځه، کور، او داسې نور.

**ښوونكي ته لارښووني:**

- ښوونكى دې د پښتو ژبې اصلي توري پر تخته وليكي او له زده کوونکو څخه دې داسې کلمې وغواړي چې د پښتو توري پکې راشي.

## دزده کوونکو فعاليتونه:

۱. د لاندې لغتونو هم معنا کلمې په تشو ځايونو کې وليکئ.

خاص، ګډ، کانسونينټ، واول.

شريک: ۲۱ توري د پښتو او فارسي ترمنځ ______________ دي.

خپل: د پښتو ______________ توري اته دي.

چپ: د پښتو الفبا ۲۲ توري د______________ دي.

کومکي: په پښتو ژبه کې څلور توري ______________ بلل کېږي.

۲. دهرې پوښتنې له پاره درې ځوابونه درکړل شوي دي. تاسو يې سم ځواب په نښه کړئ او بيا يې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| په پښتو کې ټول مستعمل توري څو دي؟ ( ) | (۴۴) | (۱۰) | (۳۰) | ( ) |
| د پښتو او دري ترمنځ ګډ توري څو دي؟ ( ) | (۲۰) | (۲۲) | (۲۸) | ( ) |
| د پښتو په الفبا کې چپ توري څو دي؟ ( ) | (۲۲) | (۲۸) | (۲۱) | ( ) |
| د پښتو الفبا کومکي توري څو دي؟ ( ) | (۱۳) | (۴) | (۲) | ( ) |

د الفبا هر توري ته يوه کلمه په خپلو کتابچو کې وليکئ چې په هماغې توري پيل شوې وي.

لکه: (آ) آسمان.

۳. د پښتو اصلي توري څو دي؟ بيا د هر توري له پاره درې درې کلمې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

۴. لاندې پښتو تورو ته داسې کلمې جوړې کړئ چې توري د کلمې په سر، منځ او پاى کې راشي.

(ټ – ډ – ړ – ځ – څ – ږ – ښ – ڼ).

لکه: (ټال) په سر کې (غټان) په منځ کې (متټ) په پاى کې.

**ارزونه:**

- آيا زده کوونکي متن سم لوستلى شي؟
- زده کوونکو د پښتو الفبا توري وپېژندل؟
- زده کوونکي کولى شي چې هر توري ته کلمې ووايي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د پښتو اصلي تورو ته کلمې جوړې او بيا دې په جملو کې وکاروي.

## شپږ ویشتم لوست

# الوتکه



**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د الوتکې په اړه معلومات پیدا کول.

**هڅوونکې پوښتنې:**

- ویلی شئ چې الوتکه د لومړي ځل له پاره چېرې او د چا له خوا جوړه شوه؟
- الوتکو د انسانانو په ژوند کې کوم بدلون راوستی دی؟

دالوتکې په وسیله انسانان له یوه ځای څخه بل ځای ته په ډېره لږه موده کې سفر کولی شي. الوتکې د انسان په ژوند کې زیات بدلون راوستی دی.

الوتکه د لومړي ځل له پاره د (۱۹۰۳) م کال د دسمبر د میاشتې په (۱۷) نېټه دوو امریکایي ورونو چې اولیف رایټ او ویلبورایټ نومېدل په هوا کړه. دوی خپله لومړنۍ الوتنه د هغې الوتکې په وسیله چې یو ماشین یې درلود چې د لرګیو، تارونو او ټوکر څخه جوړه شوې وه د (۳۷) مترو په واټن سرته ورسوله. دا په نړۍ کې لومړنۍ الوتنه وه. تر دې وروسته نورو پوهانو د الوتکې جوړولو په کار کې ښه والی راوست، او س په نړۍ کې راز راز الوتکې جوړې شوې دي. ځینې الوتکې تر (۱۴۰۰۰) مترو لوړوالي پورې الوتنه کولی شي، لویې الوتکې زیات شمېر کسانو له پاره ځای لري.



**ښوونکي ته لارښوونې:**

- ښوونکی دې متن ولولي.
- د هوايي ترانسپورټ د ارزښت او ګټو په هکله د زده کوونکو د سويې په پام کې نیولو سره سم معلومات ورکړي.

## دزده کوونکو فعالیتونه:

۱. متن د یو بل په مرسته ولولئ!
۲. د لاندې کلمو مترادف له چوکاټ څخه پیدا او د کلمو تر څنګ یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

| تغیر - فاصله – دنیا – چټک - طیاره |
|---|

الف: الوتکه ________________.
ب: بدلون __________________.
ج: واټن __________________.
د: نړۍ __________________.
هـ: تېز ___________________.

۳. د لاندې پاراګراف تش ځایونه په مناسبو کلمو سره په خپلو کتابچو کې بشپړ کړئ.
الوتکه د لومړي ځل له پاره په ۱۹۰۳ ________ کال کې دوو ___________ ورونو چې __________ نومبدل جوړه کړه.
دوی خپله _______ الوتنه د هغې الوتکې په وسیله چې یو ______ یې درلود، چې د_____________، تارونو او __________ څخه جوړه شوې وه د ۳۷ مترو په _______ سرته ورسوله. د ا په نړۍ کې لومړنۍ ___________ وه.
۴. لاندې کلمې په خپلو کتابچو کې په جملو کې وکاروئ.
(الوتکه – نړۍ – چټک – سفر – بدلون).

**ارزونه:**

- آیا زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- زده کوونکي د متن په مفهوم پوه شوي دي او خپل معلومات نوروته ویلی شي؟
- آیا زده کوونکو و کولی شول چې ورکړل شوی پاراګراف په مناسبو کلموبشپړکړي؟
- آیا زده کوونکو د کلمو ضد پیدا کړی دي؟

**کورنۍ دنده:**

د الوتکې د ارزښت او ګټې په هکله څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# اوه ویشتم لوست

# د کلام اجزاوې

## نوم

**موخه:** د نوم په معنا او مفهوم باندې پوهېدل، په جملو کې د نوم سم کارول، اود دې متن لوستل او ليکل دي.

**هڅوونکې پوښتنې:**

- تاسې د څو شيانو نومونه واخلئ؟
- ستاسو په فکر نوم څه ته وايي؟

## نوم:

**نوم د وينا هغې برخې ته وايي چې د هغه په واسطه يو شخص، حيوان يا شی نومول کېږي نوم د څوک، چا، څه شي او څه شيانو پوښتنو ته ځواب ورکوي.**

لاندې جملې ولولئ! ترکومو کلمو لاندې چې کرښه ايستل شوې ده د انسان، حيوان يا د يو شي نوم را ښيي.

١. زرغونه نن بازار ته ځي.
٢. اڅک خپل ملګري ته ليک ليکي.
٣. ګل غوټۍ لمر ته ناسته ده.
٤. هغه آس زيړ رنګ لري.

زرغونه، اڅک، ګل غوټۍ، آس

کلمې ټول نومونه دي زموږ په ژبه کې د (څوک او چا) پوښتنې د ا شخاصو او د څه شي پوښتنې د شيانو له پاره راځي.

مثلاً چا ـ څوک؟ ـ غوټۍ ـ ايمل ـ او زمری.

يادونه: په پښتو کې چا اوڅوک د مفرد اوجمع د پاره يو ډول راځي او توپير يې د جملې په خبر کې ځرګنديږي.

څه شی؟ ونه، موټر، اوبه، ځمکه. څه شيان؟ غرونه، ونې، ګلان، ميږی.

**ښوونکي ته لارښوونې:**

- متن په لوړ آواز ولوله!
- د نوم او دهغه د مثالونو په وړاندې کولو سره معلومات ورکړه!
- پر زده کوونکو باندې د نوم ببلګې د تختې پرمخ مشق او تمرین تر سره کړه!

## دزده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن په لوړ آواز ولولي.

۲. لاندې نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ بیا د انسان نومونه پکې په نښه کړئ.

(زرغونه، روښان،ونه، ثوکۍ، آس، پسه).

۳. په لاندې نومونو کې د شیانو نومونه په نښه کړئ!

(مېز، ګېلاس، ساعت، ونې، ګلان، لاسونه).

۴. لاندې متلونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ او بیا تر نومونو لاندې یې کرښه وکاږئ!

۱. لمر په دوو ګوتو نه پټېږي.

۲. له بېکاره هر څوک بې زاره دی.

۳. ستا څه کمی دی، چې په لاس دې سورغمی دی.

۴. شرمښ هغه مېږه وږي، چې له رمې څخه جلا وي.

۵. خپله خوله هم کلا ده هم بلا ده.

۵. زده کوونکي دې په دوه کسیزه توګه یو بل ته املا ووایي او خپلې غلطۍ دې د ښوونکي په مرسته اصلاح کړي.

**ارزونه:**

- آیا زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- د نوم او دهغو مثالونو په وړاندې کولو سره کولی شي معلومات ورکړي؟
- آیا زده کوونکي وکولی شول چې د انسان، حیوان او دشیانو نومونه په ورکړل شوو نومونو کې په نښه کړي؟
- په ورکړل شوو متلونو کې یې نومونه پیدا کړی شول؟

**کورنۍ دنده:**

په خپله خوښه د انسان، څارویو، او شیانو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ بیا یې په جملو کې وکاروئ.

## اته ویشتم لوست

# ټلویزیون



**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل د ټلویزیون پېژندل او د ټلویزیون په اړه معلومات ورکول دي.

**هڅوونکې پوښتنې:**

- په انځور کې څه وینئ؟
- تاسې د ټلویزیون کومو خپرونو سره مینه لرئ؟

ټلویزیون د خبرو رسولو هغه وسیله ده چې د آواز سربېره تصویر هم ښیي. ټلویزیون یو داسې بکس دی چې مخې ته یې ښیښه لګېدلې ده. په دې ښیښه باندې د ویونکو او نورو شیانو تصویرونه ښکاري. د دې شاته د وړو وړو پرزو یو جال دی. ټلویزیون د راډیو یو پر مخ تللی شکل دی. توپیر یې دادی چې موږ له راډیو څخه یوازې غږونه اورو او په ټلویزیون باندې له آواز سربېره تصویرونه هم راځي.

بل توپیر یې دادی چې راډیو تر لیرې ځایونو پورې اورېدل کېږي. خو ټلویزیون له خپل مرکز څخه تر (۷۰) کیلو متره لیرې اورېدل او لیدل کېدای شي. خو اوس د ډېرو انتنونو په جوړولو سره دا کار اسانه شوی دی. دهر ځای او دهر هېواد په ټلویزیون کې ډول ډول پروګرامونه خپرېږي.

په ټلویزیون کې د قرآن کریم ښوونه، تلاوت، روغتیایي پروګرامونه، خبرونه، تفریحي پروګرامونه، سپورتي لوبې، ترانې، سندرې، مرکې او ښوونیز فلمونه او داسې نور خپرېږي.



هر څوک د خپلې خوښې پروګرامونه په خپل وزګار وخت کې ګوري.

ټلویزیون د بېلا بېلو ښارونو، هېوادونو او کلیو عکسونه ښیي د ټولې نړۍ له حالاتو څخه موږ خبروي. د ساینس او د نورو علومو سبقونه را ته ښیي. ټلویزیون له سهار څخه تر ماښامه پورې د ماشومانو او ځوانانو د ښې روزنې له پاره هم ښوونیزې او روزنیزې خپرونې لري او ترې ګټه اخلي.

زموږ د هېواد ماشومانو او ځوانانو ته په کار ده چې دوی د ټلويزيون تعليمي او تربيوي خپرونې وګوري او ګټه ترې واخلي. د ټلويزيون د کتلو په وخت کې بايد تاسې ليرې کښيني. ځکه چې نژدې کېناستل سترګو ته زيان رسوي.

د انګليسي ( برد ) او امريکايي ( جنکتر ) په هڅو پر ( ۱۹۲۵ ) م کال کې د برېښنا په څپو کې ټلويزيون د عکس لېږدولو تجربه بريالۍ شوه او بيا يو شمېر نورو پوهانو ددې کار په بشپړتيا کې هڅې وکړې او د ټلويزيون ننداره يې په نړۍ کې ورونښودله.

**ښوونکي ته لارښوونې:**

- متن ولوله!
- د ټلويزيون د ارزښت او ګټو په هکله معلومات ورکړه!
- له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړه چې کوم پروګرامونه د دوی له پاره په زړه پورې دي په دې هکله دې خبرې اترې وکړي.

## دزده کوونکو فعاليتونه:

۱. لغتونه او معناګانې:

| لغتونه | او معناګانې | لغتونه | او معناګانې |
|---|---|---|---|
| شکل | بڼه | توپير | فرق |
| تصوير | عکس | مرکو | خبرو |
| تلاوت | سم لوستل او قرائت | زيان | ضرر |
| هڅې | کوښښونه | | |

۲. په خپلو کتابچو کې له پورتنيو لغتونو څخه مناسبې جملې جوړې کړئ!

۳. په لاندې کلمو کې د ضمير کلمې په نښه او په خپلو کتابچو کې يې وليکئ.

(ټلويزيون، وسيله، هغه، دوی، څوک، موږ، ملت، ټول، زموږ، تاسې)

**ارزونه:**

- آيا زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- د ټلويزيون په اړه يې پوهه ترلاسه کړه؟
- زده کوونکي کولی شي چې د ټلويزيون د ارزښت او ګټو په هکله خبرې وکړي؟
- په ورکړل شويو کلمو کې يې ضميرونه وپېژندل؟

**کورنۍ دنده:**

د ټلويزيون کومه خپرونه مو خوښېږي دهغې په باره کې په خپلو کتابچو کې څو کرښې وليکئ.



## نهه ويشتم لوست

# د ماين خطرونه

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل او د ماين له خطرونو څخه د ځان ژغورل دي.

**هڅوونکې پوښتنې:**

- که چېرې داسې ډبرې په يوځای کې ووينو چې په سره رنګ په نښه شوې وي بايد څه وکړو؟
- د ناچاودلو مرميو او ماينونو په ليدو سره بايد مور چاته خبر ورکړو؟

زرمينه د خپلې ترور کره تلله. کومه لاره چې د هغې د ترور کورته تللې وه، له يوې د ښتې څخه تېرېده چې ځينې ناپېژندل شوي شيان موجود وو.



يوه ورځ د مخه زرمينې ته د ماينونو د خطر پېژندنې او ناچاودلو شيانو د کورس ښوونکي د ماينونو له خطرڅخه د مخنيوي په اړه معلومات ورکړي و، د لارې په اوږدو کې زرمينې ته د خپل استاذ خبرې په ياد وې او په فکر کې يې راګرځېدلې، هسې نه چې په کوم ماين وربرابره شي. په همدې فکر کې وه چې نابېره يې سترګې په ماين ولګېدې. زرمينه بې له دې چې وارخطا شي ودرېده او د خپل استاذ ټولې خبرې يې را په ياد شوې. لومړی يې هغه د ډبرې په وسيله په نښه کړ. خو په دې يې هم تسلي ونه شوه بيا يې يوه ټوټه را واخيسته او په هغه ځای کې يې د يوې نښې نښانې په شکل کېښوده. په خپله په هماغه لاره چې راغلې وه ستنه شوه او دماين پاکۍ دفتر ته يې خبر ورکړ، دماين پاکولو يوه ډله له زرمينې سره روانه شوه او هغه سيمه يې له ماينونو څخه پاکه کړه. د ماين پاکۍ دفتر د زرمينې ښوونځي ته دهغې د ښه کار په خاطر يو ستاينليک واستوو. بله ورځ سرښوونکي د ښوونځي ټول زده کوونکي راوبلل او د زرمينې د هوښيارۍ کيسه يې ټولو ته بيان کړه. بيا يې له زرمينې څخه مننه وکړه او ستاينليک يې ورکړ. سر ښوونکي له ټولو

زده کوونکو ښځه وغوښتل چې باید د زرمینې په شان له هوښیارۍ او زیرکۍ څخه کار واخلي. د ماین د لیدلو په صورت کې باید دماین پاکۍ دفتر ته خبر ورکړو که موسسه لیرې وي نو ښایي چې د کلي مشران او سپین ږیري خبر ورکړي.

**ښوونکي ته لارښوونې:**

- د ماین دخطرونو په هکله معلومات ورکړه!
- زده کوونکي وهڅوئ چې د ماینونو د خطرونو په هکله چې څه معلومات لري خبرې پرې وکړي.

## دزده کوونکو فعالیتونه:

۱. د لاندې کلمو مترادف له درکړل شویو کلمو څخه پیدا او د کلمو ترڅنګه یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

| | | |
|---|---|---|
| نابېره ـ | ناڅاپه ـ | سمدوار |
| ډېرې ـ | لوټې ـ | تیرې |
| تسلي ـ | اطمینان ـ | باور |
| شکل ـ | بڼه ـ | څېره |
| سیمه ـ | منطقه ـ | کلی |

۲. لاندې پوښتنو ته ځوابونه وواياست او خپل ځوابونه د پاراګراف په بڼه پر خپلو کتابچو کې ولیکئ.

الف: زرمینه چېرته تلله؟ ب: په لاره کې یې څه ولیدل؟ ج: زرمینې څه وکړل؟

د: بیا یې چاته خبر ور کړ؟ هـ: په پای کې څه وشول؟

و: که تاسې هم په کومه سیمه کې له ماین سره مخامخ شئ څه کولی شئ؟

۳. لاندې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکئ او د ضمیر له کلمو څخه کرښه وکاږئ.

ورځ ـ هغه ـ ماین ـ سیمه ـ چا ـ ځوک

الف: زرمینه بې له دې چې ــــــــــــــ شي، ودرېده.

**ارزونه:**

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- زده کوونکو د ماین د ننبو په اړه معلومات پیدا کړ؟
- آیا زده کوونکي د متن په مطلب خبرې کولی شي؟
- په ورکړل شویو کلمو کې د ضمیر کلمې پیدا کړئ؟

**کورنۍ دنده:**

د لوستل شوې کیسې مطلب په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

## د پرشم لوست

# د ټپ تړل

**موخه:** د متن سم لوستل، ليکل او د ټپ دتړلو په هکله معلومات ورکول دي.

**هڅوونکې پوښتنې:**

- آيا ستاسو کوم ځای کله ټپي شوی دی؟ بيا مو د خپل ټپي شوي ځای په اړه څه فکر کړی دی؟
- که يو ځای مو ټپي شي څه بايد وکړئ؟

رحمان او اجمل په بڼ کې لوبې کولې. د لوبو په وخت کې ناڅاپه د رحمان پښه وښويده او په ځمکه راوغورځيده. لاس يې ټپي او ډېر ژوبل شو.

اجمل نور څه پيدا نه کړل يو څه خاوره يې دهغه پر ټپي شوي ځای واچوله چې وينه يې پرې بنده شي. کله چې رحمان کورته راغی موريې شليدلې کالي او دلاس ټپ وليد. ترې يې وپوښتل چيرې دې ځان ژوبل کړ؟ رحمان وويل مور جانې ما او اجمل دواړو په بڼ کې لوبې کولې چې ناڅاپه مې پښه وښويده او پرځمکه وغورځېدم مور يې نور هېڅ ونه ويل لومړی يې په پاکو اوبو او صابون د هغه ټپ له خاورو او وينو ومينځه او په يو نرم او پاک ټوکر يې وتاړه چې وينه يې بنده شي. کله چې دهغه پلار خبر شو رحمان يې د کلي نږدې کلينيک ته ور ووست. پلار يې ډاکټر ته ټوله کيسه و کړه ډاکټر د هغه ټپ له خاورو څخه ښه پاک کړ، بيا يې د ميکروب ضد درمل پرې واچول او زخم يې وتاړه.



بيا يې ورته وويل: پر ټپ خاوره او نسوار اچول ډېر زيان لري. تيتانوس او نورې خطرناکې ناروغۍ مينځ ته راوړي او کله کله د ټپي د مړينې سبب ګرځي. په خاورو کې ډول ډول ميکروبونه وي چې که پر ژوبل شوي ځای واچول شي په ډېره اسانۍ سره دغه ميکروب د انسان بدن ته ننوځي د ټپونو په جوړېدلو کې پاکوالی لومړۍ درجه ارزښت لري ځوک چې ټپ تړي بايد خپل لاسونه په پاکو اوبو او صابون پرې مينځي او بيا زخم په پاکه ټوټه وتړي او تر جوړېدو پورې پاک وساتل شي.

### ښوونکي ته لارښوونې:

- ښوونکی دې لوست ولولي او نوې کلمې دې معنا کړي.
- د ټپ د تړلو او دهغه د پاک ساتلو په هکله دې معلومات ورکړي.

### دزده کوونکو فعاليتونه:

۱. زده کوونکي دې د لوست متن ولولي، بیا دې دهر ګروپ یوتن د ټپ د تړلو په هکله خبرې وکړي.

۲. لغتونه او معناګانې:

| | |
|---|---|
| ټپ ـ زخم | ناڅاپه - نابېره |
| شليدلې ـ څیرې | ټوکر ـ ټوټه |

۳. لاندې پوښتنو ته ځوابونه ورکړئ!

- رحمان او اجمل په بڼ کې څه کول؟
- ډاکټر درحمان پلار ته څه وویل؟
- کوم شی د تیتانوس د ناروغۍ سبب کېږي؟

۴. له درکړل شوو قوسونو څخه د کلمو سم شکل وټاکئ او د جملو په تشو ځایونو کې يې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

اجمل دهغه په ټپ یو موټی ______________ واچوله. (ښاوره، خاوره)

ډاکټر وویل: په ټپ خاوره اچول ډېر __________ لري. (ظرر، ذرر، ضرر)

د زخم په مینځلو کې دا پشولو اوبو او________ څخه ګټه واخلئ. (صابون، ثابون)

د ټپ __________ به پاک ټوکر ښه وي. (ترل، تړل)

ټپ باید لومړی په پاکو اوبو __________ شي. (ومینځل، واینځل)

۵. دلاندې مفردو کلمو د جمع شکل په خپلو کتابچو کې ولیکئ

بڼ ـ ډاکټر ـ ټپ ـ لوبه ـ لاس ـ پلار.

### ارزونه:

- آيا زده کوونکي متن لوستلی شي؟
- آیا دوی د ټپ په هکله خبرې کولی شي؟ او د ټپ د لارو چارو په اړه يې معلومات ترلاسه کړ؟
- پوښتنو ته يې ځوابونه وویلی شول؟

### کورنۍ دنده:

لاندې کلمې په خپلو کتابچو کې په جملو کې وکاروئ.

(ټپ، زخم، خاوره، پاکوالی، میکروب، بڼ)

# یو دېرشم لوست

# د نشه یي توکو زیانونه

**موخه:** د متن لوستل، لیکل، د نشه یي توکو په زیانونو پوهېدل او له هغو څخه ځان ساتل دي.



**هڅوونکې پوښتنې:**

- آیا ویلی شئ چې نشه یي توکي په څو ډوله دي؟
- که چېرې یو څوک په نشه یي توکو روږدی وي د هغه ژوند به څه ډول وي؟

نشه هغه حالت ته وایي چې نشه کوونکی یې د عادي حالت څخه ووځي.
اودبېو او بدو توپیر و نشي کړای. نشه یي توکي لکه چرس، بنګ، تریاک، هیروئین، شراب او داسې نور. چې په هره بڼه وکارول شي بدن ته زیان رسوي.او انسان خپل جسمي او روحي فعالیتونه په ښه توګه سرته نشي رسولی. پورته نشه یي توکي په اقتصادي لحاظ انسان ته زیان رسوي. نشه یي انسان د نشې د ترلاسه کولو له پاره په هره بیه چې وي پیسې ورکوي. له اقتصادي زیان سربېره د انسان په وجود کې ډول ډول ناروغۍ رامنځ ته کوي. او د هرې ورځې په تېرېدو سره د خپل وجود پیاوړتیا له لاسه ورکوي. نشه یي کسان د وجود په کمزوري کېدو نه شي کولی چې خپل ورځیني کارونه سرته ورسوي او یا د خپلو کارونو له پاره مهال وېش په پام کې ونیسي. نشه یي کسان د خپل بیکاره او کمزوري وجود له مخې د کار کولو له ډګر څخه وځي ورو ورو له غریبۍ سره مخ کېږي د خپلې کورنۍ او ټولنې د اوږو بار ګرځي. ډېر



تنکي ځوانان د نشه یي توکو د پیسو د تر لاسه کولو له پاره په غلا او نورو ډول ډول جرمونو لاس پورې کوي. د نشه یي توکو د عادت عوامل: جګړه، کډوالي، بې وسي، ناوړه او خراب ملګري او کورنۍ ستونزې او داسې نور دي، نو په کار ده هغه کسان چې په دې ناوړه عمل باندې

اخته دي له ځان سره پیاوړي او قطعي پرېکړه وکړي او دغه بد او زیان رسوونکی عمل پرېږدي. او پر ځای یې خپل وجود په مېوو او دانو پیاوړی کړي. تر څو په ژوند کې نېکمرغه او بریالی واوسي.

**ښوونکي ته لارښووني:**

- ښوونکی دې متن ولولي او بیا دې د نشه یي توکو په زیانونو لنډې خبرې وکړي.
- ښوونکی دې له زده کوونکو څخه په وار وغواړي چې د نشه یي توکو نومونه واخلي او د زیانونو په اړه دې یوه یوه جمله د تختې پرمخ ولیکي.

## دزده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي.

۲. د نشه يي توکو نومونه دې واخلي او په زیانونو دې نورو ته معلومات ورکړي.

۳. لاندې پوښتنو ته مناسب ځوابونه ووایئ.

- د نشه یي توکو د عادت عوامل کوم دي؟
- نشه یي خلک ولې خپل ورځیني کارونه په سمه توګه نه شي تر سره کولی؟

۴. د لاندې کلمو ضد پیدا او د کلمو تر څنګه یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

ښه ــ ورځ ــ جګړه ــ خراب

**ارزونه:**

- آیا زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- زده کوونکو د نشه یي توکو د زیانونو په هکله پوهه ترلاسه کړه؟
- ایا زده کوونکي کولی شي چې د نشه یي توکو دزیانونو په هکله خبرې وکړي؟
- زده کوونکي کولی شي چې د نشه یي توکو د زیانونو په هکله څو کرښې ولیکي؟

**کورنۍ دنده:**

نشه یي انسان ولې خپل ورځیني کارونه په سمه توګه نشي ترسره کولی؟
په دې هکله څو کرښې ولیکئ.

## دوه دېرشم لوست

# د چینې غاړه



**موخه:** د متن لوستل، لیکل د چینې داوبو د ارزښتونو او ګټو په هکله معلومات ورکول او په متن کې د صفت د کلمو په نښه کول دي.

**هڅوونکې پوښتنې:**

- تاسو په کوم ځای کې چینه لیدلې ده؟
- په کومو ځایونو کې چینې موجودې دي؟



الله پاک زموږ د ګران هېواد په ځینو ځایونو کې ښکلې او د خوندورو اوبو چینې پیدا کړې دي.
د چینو اوبه ډېرې رڼې، پاکې او سړې دي. زموږ خلک د ښناک له پاره د چینو اوبه کاروي. زیاتره چینې د غرونو په لمنو او ښکلو درو کې موجودې وي، چې د هغوسیمو خلک ورځخه پوره ګټه اخلي. ښځې، نجونې او پېغلې د ښنلو داوبو دراوړلو له پاره چینو ته ځي او په منګې کې اوبه راوړي. د چینې اوبه د خدای (جل جلاله) لوی نعمت دی، نو ددې وړیا نعمت په هکله زموږ خلکو په لنډیو کې په ډېره ښه توګه د چینو یادونې کړې دي. غوره داده چې د چینو له اوبو سره بې پروایي ونه کړو او په هغو کې د چټلیو د اچولو او یا نورو ورانیو څخه په کلکه ډډه وکړو او د دې طبیعي زېرمې په ساتنه کې ډېره پاملرنه ولرو.

ښوونکي ته لارښوونې:

- متن دې ولولي!
- د چینې د ارزښت په اړه دې معلومات ورکړي!
- په زده کوونکو باندې د متن له مخې د صفت کلمې پیدا او د تختې پرمخ ولیکي.
- زده کوونکي دې وهڅوي چې دچینې په هکله نورې لنډۍ له یاده زده کړي او بیا دې په ټولګي کې ووایي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي.
۲. د چینو د ساتلو په اړه دې څو زده کوونکي خبرې وکړي.
۳. پوښتنې:
   - د چینې اوبه ولې سړې دي؟
   - د چینې اوبه ولې روڼې او پاکې دي؟
۴. لاندې کلمې ولولئ، په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ، د صفت کلمې په نښه کړئ او وروسته یې په جملو کې وکاروئ.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| پاک ـ | چینه ـ | هېواد ـ | ګران ـ | ښکلو ـ | غزنی ـ |
| ډېر ـ | ګټه ـ | خلک ـ | اوبه ـ | روڼې ـ | پاملرنه ـ |

ارزونه:

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- آیا دوی د چینو د ارزښت او ګټو په اړه خبرې کولی شي؟
- زده کوونکو پوښتنو ته سم ځوابونه وویل؟

کورنۍ دنده:

په خپلو کتابچو کې د چینې د ارزښت او ګټو په اړه څو کرښې ولیکئ!

# دريم درس لوست
## خاص نوم

**موخه:** د متن لوستل، ليكل د خاص نوم پېژندل او په جملو کې يې کارول دي.

**هڅوونکې پوښتنې:**

- څوک ويلی شي چې خاص نوم کوم نوم ته وايي؟
- تاسې د خاص نوم څو بېلګې ووايئ!

**خاص نوم:** د ټاکلو اشخاصو او شيانو د نومونو له پاره کارول کېږي،

لکه: خوشحال ختک، جامي، ميرويس نيکه، غازي امان الله خان او نور...

د لاندې کلمو په هره برخه کې يو لړ خاص نومونه راوړل شوي دي تر لوستلو وروسته خاص نومونه پيدا کړئ او بيا يې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

۱. خوشحال ختک، رحمان بابا، ملالۍ، زرغونه انا.
۲. ښارونه: کابل، ننګرهار، قندهار، پېښور، توکيو.
۳. هېوادونه: افغانستان، امريکا، ايران، پاکستان.
۴. سيندونه: هريرود، هلمند، آمو، کوکچه.
۵. بحيرې: کسپين، توره بحيره، مديترانه.
۶. اوقيانوسونه: د اطلس او قيانوس، د هند اوقيانوس.
۷. سيارې: عطارد، زهره، مريخ، زحل، او رانوس.
۸. ورځپاڼې: د کابل انيس ورځپانه، د کابل ښار د اصلاح او هېواد ورځپاڼې
۹. مجلې: د کابل عرفان، کابل، د کمکيانو انيس.

**ښوونکي ته لارښووني:**

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي.
- د خاص نوم د پېژندلو څو بېلګې دې پر تخته ولیکي.
- لکه: افغانستان، بلخ.
- ښوونکی دې د متن نوې کلمې د تختې پر مخ ولیکي. او له زده کوونکو څخه دې وغواړي چې خاص نومونه په ګوته کړي.

## دزده کوونکو فعالیتونه:

۱. متن دې په لوړ آواز ولولي.

۲. په لاندې کلمو کې خاص نوم په نښه او بیا یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

رحمان بابا ـ زرغونه انا ـ کابل ـ ننګرهار ـ مزار شریف ـ

ایران ـ د ننګرهار سپین غر آمو سیند.

۳. لاندې متن په خپلو کتابچو کې ولیکئ، بیا تر خاصو نو مونو لاندې یې کرښه وکاږئ.

شېرباز اکا خپلو زامنو سورګل او چنارګل ته نصیحت کاوه او ویل یې: «ګرانو زامنو! زما خبرې په غور سره واورئ. تل یو موټی اوسئ. څوک مه پرېږدئ چې ستاسو تر منځ درز واچوي. کومه رمه چې له ما څخه تاسو ته پاتې ده د زیاتوالي په حال کې ده.

نو او س د پخوا په شان دا امکان نشته چې مېږې د څړ له پاره یوازې د بکوا دښتې ته بوځئ.

ښه به دا وي چې رمه د سپین غره او یا تور غره په لمنو کې وپیایئ.

**ارزونه:**

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- آیازده کوونکو د خاص نوم په اړه پوهه ترلاسه کړه؟
- په متن کې یې خاص نومونه پیدا کړای شول؟

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په کور کې څو خاص نومونه په کتابچو کې ولیکي او بیا دې په جملو کې وکاروي.

یادونه:

بکوا د فراه په ولایت کې د یوې دښتې نوم دی.

## څلور دېرشم لوست

# ګل پاچا الفت



**موخه:** د متن سم لوستل، ليكل، د ګل پاچا الفت پېژندل او په متن كې د خاص نوم په نښه كول دي.

**هڅوونكې پوښتنې:**

- آيا د ګل پاچا الفت په هكله څه ويلی شئ؟
- څوک كولی شي چې ددې ليكوال په هكله خپلو ټولګيوالو ته معلومات وركړي؟

ګل پاچا الفت د مير سيد پاچا زوی په ( ۱۲۸۷ ) لمريز هجري كال د لغمان د قرغيو دولسوالۍ په عزيز خان كڅ كې زېږېدلی و، دی يو پوه او فاضل انسان و. د خپل وخت پوهې يې حاصل كړې، ځرنګه چې د غه ستر اونوميالی ليكوال او شاعر د زده كړې په پړاو كې ډېر ذكي او هوښيار و، نو پرخپلو استاذانو ډېر ګران و.

نوموړي كلونه كلونه دهېواد په علمي او فرهنګي ټولنو كې دنده تر سره كړې ده. ډېر كتابونه يې ليكلي دي. (( غوره نثرونه )) او (( غوره اشعار )) يې مشهور كتابونه دي.

ښاغلی الفت په خپلو ليكنو كې موږ ته بلنه را كوي چې علم او پوهه زده كړو او عمل وربانديې وكړو. لكه چې وايي: بې عمله پوهه د غلطې پوهې مثال لري او غلطه پوهه له انسان څخه شيطان جوړوي. همدا رنګ خپل هېواد اوخلک ورباندې ګران وو او ټول افغانان ددې هېواد بچيان بولي، لكه چې وايي:

ديوه وطن او لاديو — تېر له سره په هېواد يو
دا وطن دی په موږ ګران
دا وطن دی د افغان

## ښوونکي ته لارښوونې:

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي.
- ښوونکی دې دمتن د مهمو ټکو په هکله زده کوونکو ته ګټور معلومات ورکړي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

١. زده کوونکي دې متن په چوپتیا سره ولولي.
٢. لاندې جملې په خپلو کتابچو کې ولیکئ او بیا یې تش ځایونه په مناسبو کلمو سره بشپړ کړئ.

   ______________ یو پوه او فاضل انسان و، په سلګونو کتابونه یې لیکلي دي.

   ښاغلی الفت یو ښه __________او لیکوال و.

   د ښاغلي الفت ______________________ مشهور کتابونه دي.
٣. د لوستل شوي شعر مطلب په نثر واړئ او په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ.
٤. په متن کې خاص نوم پیدا او په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ.

### ارزونه:

- آیا زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- زده کوونکي د ګل پاچا الفت په هکله خبرې کولی شي؟
- زده کوونکو د شعر مطلب په نثر ولیکلی شو؟
- زده کوونکو په متن کې خاص نومونه پیدا کړل؟

### کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د ګل پاچا الفت په اړه، څه چې یې زده کړل، څو کرښې ولیکي.

## پنځه د برشم لوست

# عام نوم

موخه: د متن لوستل، لیکل، د عام نوم پېژندل او په جملو کې یې کارول دي.

**هڅوونکې پوښتنې:**

- ستاسو په فکر عام نوم څه ډول نوم ته ویل کېږي؟
- تاسې کولی شئ چې د عام نوم څو بېلګې ووایئ؟

**عام نوم:** هغه نوم ته وايي چې په خاصو او ټاکلو شيانو او ځايونو د لالت نه کوي. عام نوم هغه خپلواکه معنا واله کلمه ده چې په خپل ځان او دخپل ځان په شان نور موجودات په عامه بڼه راښيي.

د مثال په توګه: سړی، ونې، بزګران، بازار، ښار، کلی، بانډه. ښځه، نجونې، هلکان، استاذ، کتاب، قلم، کور.

لاندې جملې ولولئ تر کومو کلمو لاندې چې کرښه ايستل شوې ده هغو ته پام وکړئ:

١. په ښوونځي کې زده کوونکي زده کړه کوي.
٢. سېلاب راغی او ونې يې له بېخه وايستې.
٣. د اطفايې کارکوونکو نن په بازار کې ډېر زيات اور مړکړ.
٤. د کابل په ښار کې ځوکاله د مخه داسې بسونه په کار لويدلي وو چې د برېښنا په واسطه يې کار کاوه.
٥. ځينې خلک په ښار او ځينې يې په کلي او بانډو کې ژوند کوي.

په پورتنيو جملو کې ښوونځي، زده کوونکي، ونې، کارکوونکي، بازار، اور، ښار، کلي، بانډه، بسونه، او برېښنا داسې کلمې دي چې يو ټاکلی شخص او يا شی نه ښيي، بلکې عام نوم را ښيي، ځکه ذکر شوي نوم ته عام نوم وايي.

### ښوونکي ته لارښوونې:

- متن په لوړ آواز ولولئ.
- د عام نوم د مثالونو په ورکولو سره زده کوونکو ته معلومات ورکړئ.
- له متن څخه عام نوم پر تخته ولیکئ لکه: ښوونځی.

### د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. متن یو د بل په مرسته په چوپتیا سره ولولئ.
۲. هر ګروپ دې د عام نوم په معنا او مفهوم په خپل منځ کې خبرې وکړي او بیا دې له هر ګروپ څخه یو تن د ټولګي په مخکې د عام نوم تعریف له یاده ووایي او څو عام نومونه دې د بېلګې په توګه پر تخته ولیکي.
۳. لاندې شعر تر لوستلو وروسته په خپلو کتابچو کې ولیکئ او تر عامو نومونو لاندې یې کرښه وکاږئ.

مردان هغه دي چې همت ناک وي　　　　د ننګ په کار کې چست وچالاک وي

خوشحال خټک

۴. لاندې متن ولولئ او یوازې عام نومونه پیدا او په کتابچو کې یې ولیکئ.
افغانستان یو زراعتي هېواد دی. ډېر خلک یې په بزګرۍ او مالدارۍ بوخت دي. دوی په کرونده کې له ماشینونو او ټرکټورونو څخه ګټه اخلي، زموږ د هېواد زیات شمېر خلک د کورنیو څارویو له حاصلاتو، لکه شیدې، مستې، پوڅي، غوښې او غوړو څخه ګټه اخلي او همدا ډول له وړیو، پوستکو، کولمو او د څارویو له ښکرونو څخه هم ګټه اخلي، چې زموږ د هېواد د صادراتو لویه برخه جوړوي.

### ارزونه:

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- زده کوونکو د عام نوم په هکله پوهه تر لاسه کړه؟
- زده کوونکي د عام نوم په اړه خبرې کولی شي او بېلګې یې په نومونو او کلمو کې ویلی شي؟
- زده کوونکي د خپلو زده کړو څخه د خوښۍ احساس کوي؟
- آیا دوی وکولی شول چې په ورکړل شوي متن کې عام نومونه پیدا کړي؟

### کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې پنځه عام نومونه له یاده په خپلو کتابچو کې ولیکي او په جملو کې دې وکاروي.

شپږم د برشم لوست

# لمريز نظام

**موخه:** د متن لوستل، ليکل د لمريز نظام په اړه معلومات ورکول دي.

**هڅوونکې پوښتنې:**

- ويلی شئ چې لمريز نظام يعنی څه؟
- آيا پوهيږئ چې زموږ په لمريز نظام کې څو سيارې موجودې دي؟

کله چې موږ آسمان ته ګورو، د ورځې لمر او د شپې په کې سپوږمۍ او ستوري وينو. د لمر په وجه ورځ رڼا وي، آسمان د شپې له خوا په ستورو او سپوږمۍ ښکلی ښکاري.

په لمريز نظام کې (۹) سيارې موجودې دي چې ټولې د لمر په شاو خوا کې څرخي. يوازې ځمکه په (۳۶۵) ورځو او شپږو ساعتونو کې چې يو کال دی يو ځل له ځمکې څخه راڅرخي.



سيارې په خپله رڼا نه لري. خپله رڼا له لمر څخه اخلي. کله چې موږ د شپې له خوا آسمان ته وګورو ډېر ستوري وينو او د ورځې له خوا موږ دا ستوري نشو ليدلی، ځکه دلمر رڼا ډېره زياته وي.

لمريز نظام د خدای تعالی (جل جلاله) د قدرتونو يوه روښانه نښه ده.

## ښوونکي ته لارښوونې:

- متن په لوړ آواز ولولئ.
- د لمريز نظام په اړه د زده کوونکو د پوهې او سويې په پام کې نيولو سره معلومات ورکړئ.

## دزده کوونکو فعاليتونه:

۱. لغتونه او معناګانې

الف: وجه　　سبب

ب: سياره　　هغه ستوري چې دلمر په شاوخوا ځرخېږي او خپله رڼا نه لري.

ج: نښه　　علامه

د: نظام　　جوړښت او ترتيب

۲. د لاندې جملو تش ځايونه په ورکړل شوو مناسبو ربطي تورو سره ډک او په خپلو کتابچوکې وليکي.

- آسمان ________ شپې له خوا په ستورو او سپوږمۍ ښکلې ښکاري.
- (په، د، له، چې)
- په شمسي نظام ____________ نهه سيارې موجودې دي.
- (کې، د، څخه، له)
- سيارې خپله رڼا د لمر ____________ اخلي.
- (چې، کې، څخه، په)
- کله چې موږ آسمان ____________ د شپې ګورو، ډېر ستوري وينو.
- (چې، کې، په، ته)
- ځمکه په ۳۶۵ ورځو، او شپږو ساعتونو کې يوځل دلمر په ____________ را ځرخي.
  (شا، خوا، شاوخوا)

## ارزونه:

- آيا زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- د لمريز نظام په هکله خبرې کولی شي؟
- آيا زده کوونکي د پوهې او معلوماتو لاس ته راوړلو څخه د خوښۍ احساس کوي؟

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د لمريز نظام په هکله څو کرښې مقاله وليکي.

## اووه دېرشم لوست

# ابن سينا

**موخه**: د متن لوستل، ليکل،او د ابن سينا په هکله معلومات ورکول دي.

**هڅوونکي پوښتنې**:

- ابن سينا څوک و؟
- څه فکر کوئ چې دغه عالم په کومو، علومو کې پوره لاس درلود؟

ابن سينا د نړۍ مشهور عالم او. د بخارا په ښار کې زېږېدلی و.

نوموړی لا د شلو کلونه و چې د خپل وخت د يوه پوه شخص په نوم يادېده.

ابـن سـينا سربېره پردې پـه شـاعرۍ کـې هم مـشهور و.ابـن سـينا د طب پـه هکلـه شپاړس کتابونه ليکلي دي. خورا مشهور کتاب يې د ( القانون فى الطب ) پـه نوم ياديږي. له دې کتاب څخه تر شپږ سوو کلونو زيات د درسي کتـاب پـه توګـه ګټه اخيستل کېده. او س هم په ځينو ځايونو کې له نوموړي کتاب څخه ګټه اخيستل کېږي. د ا کتاب د عصري طب بنسټ جوړوي.

ابـن سـينا د فلـسفې او عقايـدو پـه هکلـه ( ۲۸ ) کتابونـه ليکلـي دي. همـدا ډول يـوولس کتابونـه يـې د نجـوم او سـاينس پـه برخـه او څلـور کتابونـه يـې د شـعر او شاعرۍ په اړه ليکلي دي. دنړۍ اوسنی طبابت دهغـه لـه معلومـاتو څخه منځ تـه راغلی او د نړۍ ټول خلک د ابن سينا خدمتونو ته په درنه سترګه ګوري.

**ښوونکي ته لارښوونې:**

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي.
- ښوونکی دې د ابن سینا په اړه معلومات ورکړي.
- ښوونکی دې نوې کلمې په تخته ولیکي او معنا دې کړي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن د یو بل په مرسته په چوپتیا سره ولولي.
خو تنه زده کوونکي دې د ابن سینا په اړه څه چې یې له متن څخه زده کړل معلومات وړاندې کړي.

۲. لاندې لغتونه معنا شوي دي تاسې له هرې کلمې څخه جملې جوړې کړئ.

| | |
|---|---|
| مشهور _____ | ( د شهرت خاوند ) |
| طبابت _____ | ( درملنه) |
| سربېره ______ | ( علاوه ) |
| نجوم _______ | ( دستورو علم) |
| عصري ______ | ( د زماني سره سم ) |
| بنسټ _______ | ( اساس ) |

۳. دلاندې پوښتنو له پاره په شفاهي توګه سم ځوابونه ورکړئ.

- ابن سینا په کوم ښار کې زیږیدلی و؟
- ابن سینا په کومو علومو کې پوره لاس درلوده؟
- ابن سینا څو کتابونه لیکلي دي؟

**ارزونه:**

- آیا زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- زده کوونکي وپوهېدل چې دغه پوه عالم کوم کوم کتابونه لیکلي دي؟
- آیا زده کوونکو وکولی شول چې پوښتنو ته سم ځوابونه ورکړي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د ابن سینا په اړه یوه لنډه مقاله ولیکي.

## اته دېرشم لوست

# دونې رېښې



موخه: د متن لوستل، ليکل او د ونې رېښو په هکله معلومات ورکول دي.

### هڅوونکې پوښتنې:

- تاسو د ونې رېښې ليدلې دي؟
- د ونو هغه برخه چې د خاورو لاندې ده څه نوميږي؟
- ستاسو په نظر دونو رېښې څه دنده لري؟

کله چې تاسو ونې ته ګورئ نو يوازې پاڼې، څانګې او تنه يې ستاسو په نظر راځي. خو دونو هغه برخه چې ترځمکې لاندې ده او د رېښو په نوم يادېږي تاسو يې نه وينئ.

رېښې هم د څانګو په شان لويې او کوچنۍ دي. تر ځمکې لاندې وي او په ستر ګو نه ليدل کېږي د ځينو ونو رېښې دهغو ونو د څانګو په اندازه په ځمکه کې غځېدلې دي.

ځينې رېښې په ځمکه کې ژورې تللې وي او ځينې د ځمکې سطحې ته نږدې وي. دريښو يوه دنده داده چې ونه په خپل ځای ټينګه ساتي. که ونه رېښې ونه لري نو تېز بادېې رانسکوروي.

تاسو به ليدلي وي چې زياتې ونې دزياتو تېزو بادونو سره ټينګې ولاړې وي. چې دا ټينګوالی يې د زياتو او کلکو رېښو دشته والي له امله دی. تاسو ته څرګنده ده چې ونې اوبو او خوړو ته اړتيا لري. ونې د رېښو په وسيله له ځمکې څخه اوبه او خواړه جذبوي. د رېښو په پای کې د وېښتانو په شان کوچنۍ رېښې موجودې دي. همدا کوچنۍ رېښې اوبه او خواړه جذبوي. بيا يې پاڼو او څانګو ته لېږدوي په کار داده چې موږ ونو ته په مناسب وخت سره اوبه ور کړو او د شاوخوا خاوره يې نرمه وساتو.



ښوونکي ته لارښوونې:
- متن ولوله!
- د ونو د ريښو په هکله معلومات ورکړه!

## د زده کوونکو فعاليتونه:

۱. زده کوونکي دې لوست په لوړ آواز ولولي او ښونور زده کوونکي دې دونې د ريښو په اړه خپل معلومات نورو ته وړاندې کړي.

۲. دلاندې کلمو متضادې کلمې له چوکاټ څخه وټاکئ او دکلمو تر څنګ يې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

لاندې ______

نږدې ________

تينګه _______

تېز _________

| سست، پيل، پاس، ورو، لرې |
|---|

۳. لاندې نيمګړې جملې په خپلو کتابچو کې بشپړې کړئ!

ريښې هم د ښاخونو په شان لويږي او ______________ وي.

د ځينو ونو ريښې د هغوونو د ښاخونو په اندازه په ځمکه کې ______________ وي.

د ريښو يوه دنده داده چې ونه په خپل ځای ______________ ساتي.

۴. زده کوونکي دې يو بل ته دلوست له مخې املا ووايي.

ارزونه:
- زده کوونکي د لوست متن لوستلی شي؟
- زده کوونکي په دې پوه شول چې د ونو ريښې څه دنده لري؟

کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د ونې دجوړښت په هکله څو کرښې وليکي.

## نهه د برشم لوست

# چاپېریال ( محیط )

**موخه:** د متن لوستل، لیکل، د چاپېریال پېژندنه، د چاپېریال د ارزښت او ګټو په هکله معلومات ورکول دي.

**هڅوونکې پوښتنې:**

- ولې شئ چې زموږ چاپېریال له څه شي څخه جوړ شوی دی؟
- په هغه ځای کې چې موږ ژوند کوو د څه شي په نوم یادېږي؟

هر هغه څه چې زموږ په شاو خوا کې دي. زموږ چاپېریال یا محیط دی. زموږ کور، کلی، ښوونځي، سړکونه، د لوبو ځای، خلک، هغه ښار او کلي چې موږ پکې اوسېږو، او هغه هوا چې موږ یې تنفس کوو دا ټول زموږ د چاپېریال یوه برخه ده. ځمکه د ټولو ژویو او الوتونکو مرغانو له پاره چاپېریال یاد ژوند محیط دی. زموږ چاپېریال پر موږ ډېره اغېزه لري.

موږ د روښنایي او تودوخې سربېره په زرګونو نورو شیانو ته اړتیا لرو. د نړۍ د وګړیو شمېر ورځ په ورځ په زیاتېدو دی. ډېر هغه څه چې موږ یې کاروو، د چاپېریال د ککړتیا سبب کېږي. چې دا ککړتیا بیا ډېرې ناروغۍ رامنځ ته کوي.

د ټولو خلکو دنده ده چې باید خپل چاپېریال پاک او سوتره وساتي. هغه مواد چې زموږ د چاپېریال د ککړتیا سبب ګرځي په دوه ډوله دي:



یو هغه چې په ځمکه کې تجزیه کېږي او چې د خاورې سره یو ځای شي ځمکه د کښت له پاره قوي کوي. دوهم ډول هغه فضله مواد دي چې د تجزیه کېدلو وړنه وي لکه پلاستیک او داسې نور. که چېرې پلاستیک په ځمکه کې وي هغه په خپلو اجزاو نه تجزیه کېږي که څاروي یې وخوري ناروغه کېږي او حتی د مړینې سبب یې ګرځي.

## ښوونکي ته لارښووني:

- متن دې په لوړ آواز ولولي.
- د چاپېریال د ارزښت او کټو په اړه د زده کوونکو نظریات او معلومات واوري او زده کوونکي وهڅوئ چې په دې اړه بحث او خبرې وکړي.

## دزده کوونکو فعالیتونه:

۱. متن یو د بل په مرسته ولولئ!

۲. خوتنه زده کوونکي دې د چاپېریال په اړه خبرې وکړي.

۳. د لاندې کلمو هم معنا له چوکاټ څخه پیدا او د کلمو څنګ ته یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

| | | |
|---|---|---|
| شاوخوا، | حیواناتو، | ضـرورت، |
| | دنیا، | |
| خلکو، | توکي، | ضرر |

چاپېریال ________

ژویو ___________

اړتیا ___________

نړۍ ____________

وګړیو __________

زیان ___________ مواد ____________

۴. پوښتنې:

الف: چاپېریال څه ته وايي؟ ب: د چاپېریال د ککړتیا علت څه دی؟

ج: بېکاره یا فضله مواد باید څه کړو؟ د: د چاپېریال ساتنه د چا دنده ده؟

۵. د لاندې جملو تش ځایونه د لېندیو په مناسبو او سمو کلمو سره په خپلو کتابچو کې بشپړې کړئ.

الف: هر هغه څه چې ستاسو شاوخوا کې دي ستاسو چاپېریال _________. (و ، کړ ، دی)

ب: ستاسو چاپېریال پرتاسو ډېرې اغېزې ___ .

(لرې، کړې، درلود)

ج: که ځاروي پلاستیک _____________ هغوی ته ډېر زیان رسوي.

(وخوري، خوړي، وخوړ)

د: د محیط ساتنه دټولو خلکو دنده ________________. (دی،ده،وي،)

### ارزونه:

- آیا زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- د ژوند چاپېریال په هکله یې معلومات ترلاسه کړ؟
- زده کوونکي د ژوند چاپېریال په اړه خبرې کولی شي؟

### کورنۍ دنده:

هر هغه څه چې ستاسو په چاپېریال کې موجود دي نومونه یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ او بیا یې په جملو کې وکاروئ.

# څلوېښتم لوست
## مفرد نوم

**موخه:** د متن لوستل، ليکل، د مفرد نوم په معنا او مفهوم پوهېدل او په جملو کې يې کارول دي.

**هڅوونکې پوښتنې:**

- ويلی شئ چې د مفرد نوم څه ډول نوم ته وايي؟
- آيا د مفرد نوم بېلګې ويلی شئ؟

**مفرد نوم:** هغه دی چې په يوه ځانګړي شخص، حيوان او شي باندې د لالت وکړي لکه: ښوونکی، ترکاڼ، قلم، مشوانۍ، پياله او داسې نور.

لاندې جملو ته پام وکړئ او ويې لولئ.

۱. ښوونکي په لوست پيل وکړ.
۲. د جمال پلار ترکاڼ دی.
۳. دغه قلم شين رنګ لري.
۴. د دې مشوانۍ رنګ تور دی.
۵. دغه پياله ښکلې ده.
۶. هغه چرګ سپين رنګ لري.
۷. د اجمل اکا يو آس لري.

**ښوونکي ته لارښوونې:**

- ښوونکی دې متن ولولي. بيا دې د مفرد نوم په اړه لنډ معلومات ورکړي.
- ښوونکی دې څو نومونه د تختې پرمخ وليکي او له زده کوونکو څخه دې وغواړي چې مفرد نومونه په ګوته کړي.

## دزده کوونکو فعاليت:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي.

۲. زده کوونکي دې لاندې جملې ولولي او يو بل سره دې مفرد نومونه په ګوته کړي او په خپلو کتابچو کې دې وليکي.

محمد ګل د پنځم ټولګي زده کوونکی دی.

محمد ګل هر سهار وختي له خوبه پاڅيږي لومړی لمونځ کوي ترچای څښلو وروسته بيا ښوونځي ته ځي.

۳. لاندې شعر ولولئ! په خپلو کتابچو کې يې وليکئ! مفرد نومونه يې په ګوته کړئ او بيا يې په څپو واړوئ.

ای دهقانه وخت د کار اوستا دزيار دی
ستا د لاس ګټې ته هرڅوک اميدواردی

خپل وطن په هر راز بوټو ښايسته کړه
ستا په زيار سره وطن ګل وګلزاردی

۴. لاندې نيمګړې جملې په خپلو کتابچو کې وليکئ او بيا يې په مفردو کلمو سره بشپړې کړئ.

- ______________ زده کوونکو ته درس ورکوي.
- زما ټولګيوال اجمل __________ د ننګرهار په ښار کې دي.

۵. څو جملې په خپلو کتابچو کې وليکئ چې مفرد نوم په کې وکارول شي.

**ارزونه:**

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- زده کوونکو وکولی شول چې په ورکړل شوو جملو کې د مفرد نوم پيدا کړي؟
- آيا زده کوونکي په شعر کې د مفرد نومونه پيدا او هره کلمه يې په څپو واړوله؟

**کورنۍ دنده:**

شپږ مفرد نومونه په خپلو کتابچو کې وليکئ او بيا يې په جملو کې وکاروئ.

## يو څلوېښتم لوست

# کولالي

موخه: د متن لوستل، ليکل، د کولالي په هکله معلومات ورکول دي.

**هڅوونکې پوښتنې:**

- ويلی شئ چې کولال څوک دی؟
- آيا ستاسو په کليو او سيمو کې کولال شته؟
- له کولالي پرته دڅو نورو کسبونو نومونه واخلئ؟

يوه ورځ ښوونکي له خپلو زده کوونکو څخه پوښتنه وکړه. هغه څوک چې له ختو څخه موږ ته شيان جوړوي څه نوميږي؟

اجمل لاس پورته کړ اوويې ويل: کولال نوميږي.

ښوونکي بيا پوښتنه وکړه: چې کولال زموږ له پاره کوم شيان جوړوي؟



ميرويس وويل: کولال له ختو څخه منګي، کوزې، کاسې، ګلدانۍ، متونه، کنډولې، تنور، او نور شيان جوړوي.

شيرشاه پوښتنه وکړه: آيا موږ هم کولی شو چې له ختو څخه داسې ښکلي شيان جوړ کړو؟ ښوونکي وويل: هو! خو دا کار جلا پوهه او تجربه غواړي.

ريدی وويل: که موږ د کولال کار

وګورو، نوښايي چې ځينې شيان ور څخه زده کړو.

ښوونکي وويل: ډېر ښه سبا به د کولال د کار ځای ته ورشو سهار چې زده کوونکي ټولګي ته راغلل، ښوونکي وويل: د مخه تردې چې د کولال ځای ته لاړ شو، موږ بايد کومې خبرې او لارښوونې په پام کې ونيسو؟اسد وويل: موږ بايد د لارې په يوه غاړه ولاړ شو.

ختک وويل: د دې له پاره چې په کولالۍ کې څه شی مات نه کړو نو په کار داده چې لوښو ته به لاس نه ور وړو.

ښوونکي وويل: ډېرې ښې لارښوونې مو وکړې که چېرې موږ له دې خبرو سره سم چلند وکړو، له دې کتنې څخه به ډېرخوند واخلو او معلومات به ترلاسه کړو.

زده کوونکي د خپل ښوونکي سره يو ځای د لارې په څنډه د کولال د دوکان په لور روان شول کله چې کولالي ته ورسېدل ښوونکي وويل وګورئ دلته د کولالۍ دماتو لوښو څومره کودي پراته دي.

دکولال د کور په مخکې د کولال زامنو او لوڼو کار کاوه، ځينو ختې په لرګيو وهله او ځينو خاوره چاڼوله. ښوونکي او زده کوونکو د کولال ماما سره روغبړ وکړ سمندر ترې پوښتنه وکړه: کولال ماما: دا خاوره ولې په لرګيو وهئ؟

کولال وويل: د دې له پاره چې خاوره ښه پخه شي. اجمل پوښتنه وکړه ولې دوی خاورې چاڼوي؟ کولال وويل: ځکه چې وړې تيږې ځنې جلا او بېلې شي.جمال پوښتنه وکړه کولال ماما، دا خاوره له کوم ځای څخه راوړئ؟

کولال وويل: له غره څخه يې راوړو. دا خاوره په هر ځای کې نه پيدا کېږي ځکه د خاورينو لوښو د جوړولو له پاره مټينه او پخه ختې په کار وي. زرغون وويل: ختې څنګه جوړوئ؟ کولال وويل: کله چې خاوره له وړو ډبرو څخه په چاڼولو جلا شي

بیا اوبه پکې اچوو چې ښه لنده شي. کله چې خټه ښه پخه شوه نو بیا یې څرخ ته راوړو.

بریالي وویل: کولال ماما! لاس دې ولې دومره ژر ژر په اوبو لندوې؟

کولال وویل: د دې له پاره لاس په اوبو لندوم چې خټه مې په لاس پورې ونه نښلي.

توریالي وویل: کولال ماما! د لوښي منځ ته ولې دومره په کراره لاس ورننه باسې؟

کولال ځواب ورکړ: د دې له پاره چې دلوښي منځ هم سم جوړ شي، نو په کراره لاس ور وړم.

ریدی وویل: وګورئ، څه ښه نقش یې پرې کښلی او څومره ښکلی لوښی ځنې جوړ شو. سور ګل پوښتنه وکړه: کولال ماما دا منګی څو ورځې لمر ته ږدئ؟
کولال وویل څلور یا پنځه ورځې چې ښه وچ شي ترڅو په داش کې مات نشي. بیا یې په داش کې ږدو چې پاخه شي. راځئ، چې داش او بټۍ هم دروښیم. بټۍ دوه پوړه لري.
لومړی لوښي په کراره د بټۍ په پاسني پوړ کې ږدو او بیا په لاندېني پوړ کې اور بلوو څو شېبې وروسته لوښي په پاسني پوړ کې پخېږي، کله چې بټۍ سړه شي بیا لوښي ځنې راباسو.

**ښوونکي ته لارښوونې:**

- ښوونکی دې متن ولولي.
- د کولالي په اړه دې معلومات ورکړي.
- نوې کلمې دې د تختې په مخ وليکي او معنا دې کړي.

## دزده کوونکو فعاليتونه:

۱. زده کوونکي دې متن په چوپتيا سره ولولي.
۲. لاندې کلمې په خپلو کتابچو کې وليکئ بيا د مفردو نومونو لاندې کرښه وکاږئ.

ښوونکي، ميرويس، اجمل، کولالي، شير، ايمل،
سهار، اسد، خټک، سمندر، جمال، توريالی، ريدي.

۳. لاندې معنا شوي لغتونه په جملو کې وکاروئ او بيا يې په کتابچو کې وليکئ.

| | |
|---|---|
| بټۍ | داش |
| لوښي | ظروف، له خټو څخه جوړ شوي شيان |
| پوړ | منزل |
| زرغون | شين |

۴. زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې له متن څخه د ضمير کلمې پيدا او وليکي.

**ارزونه:**

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- آيا زده کوونکو کولال او د هغه د دندې په هکله پوهه او معلومات پيدا کړل؟
- دکولالي په اړه معلومات ورکولی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د کولالي د کسب په اړه څو کرښې مقاله وليکي.

# دوه څلویښتم لوست

## نیوټن

موخه: د متن لوستل، لیکل د نیوټن پېژندنه او د ځمکې د جاذبې قوې په اړه معلومات ورکول دي.

**هڅوونکې پوښتنې:**

- د نیوټن نوم خو به مو اورېدلی وي هغه څوک او کوم خدمت یې کړی دی؟
- ویلی شئ چې د جاذبې قوه څه ته وایي؟

نیوټن یو ساینس پوه و چې تقریباً (۳۰۰) کاله د مخه یې په انګلستان کې ژوند کاوه. وایي چې یوه ورځ نیوټن د مڼې تریوې ونې لاندې ناست و. یوه مڼه له ونې څخه و لوېده او د نیوټن په سر ولګېده. نیوټن د مڼې له رالوېدو څخه په دې فکر کې شو چې هر شی ولې ځمکې ته را لوېږي؟ له ډېرې څېړنې وروسته هغه په دې پوه شو چې د ځمکې د جاذبې قوه پر شیانو باندې اغېزه کوي او هغه د ځمکې خواته را کاږي.

آیا تاسو پوهېږئ چې مڼې ولې له ونې څخه را لوېږي؟ یا یو توپ د مېز له سر څخه ولې ښکته پر ځمکه را لوېږي؟

ځواب یې دا دی چې ځمکه یوه قوه لري چې هرشی د ځان خواته را کاږي. او دې ته د ځمکې جاذبه قوه وایي. د ځمکې جاذبه قوه هغه د ځمکې د مرکز خوا ته را کش کوي. هر څومره چې یو شی د ځمکې سطحې ته نژدې وي د ځمکې د جاذبې د قوې په سبب وزن پیدا کوي.

هر څومره چې موږ له ځمکې څخه لرې شو د ځمکې د جاذبې اغېزه کمېږي. باید ووایو چې د جاذبې قوه په هر شي باندې که لوی وي او که واړه ، اغېزه لري.

نیوټن هغه عالم او پوه و چې د ساینس د علم په ساحه کې یې د ځمکې د جاذبې قانون کشف کړ.

**ښوونکي ته لارښووني:**
- متن دې ولولي.
- د جاذبې قوې په اړه چې نیوټن څنګه کشف کړه معلومات ورکړه!

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. متن یو له بل سره ولولئ!
۲. د جاذبې قوې په اړه په خپلو ګروپونو کې خبرې وکړئ!
۳. لغتونه او معناګانې

| لغتونه | معناګانې |
|---|---|
| الف: جاذبه | کشش |
| ب: اغیزه | تاثیر |
| ج: نیغ | مستقیم |
| د: کشف | د یوه نوي شي پیدا کول |

۴. د لاندې جملو تش ځایونه په مناسبو کلمو سره په خپلو کتابچو کې ډک کړئ.
الف: نیوټن د ځمکې د جاذبې قانون ________کړ.
ب: نیوټن یو ________ و.
ج: ځمکه هر شی د ځان لوري ته را کاږي ځکه چې ځمکه د جاذبې قوه ________.

۵. لاندې پوښتنو ته سم ځوابونه وټاکئ.
– د ځمکې د جاذبې قوه هر شی کومې خواته را کش کوي؟
الف: د ځمکې د مرکز خواته.
ب: د ځمکې د سطحې خواته.
ج: د شمال خواته.
د: د جنوب خواته.
– کوم شی د جاذبې قوه لري؟
الف: یواځې ځمکه.
ب: یواځې سپوږمۍ.
ج: هر شی.
د: هېڅ شی.

**ارزونه:**
- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- د نیوټن په اړه یې پوهه یا معلومات تر لاسه کړل؟
- زده کوونکي په دې هکله خبرې کولی شي چې هر شی ولې د ځمکې خواته لوېږي؟

**کورنۍ دنده:**
زده کوونکي دې لاندې کلمې په خپلو کتابچو کې په جملو کې وکاروي.
(د جاذبې قوه، نیوټن، ځمکه، کشف)

## دري ثلوېښتم لوست
# د جمع نوم

**موخه:** د متن لوستل، ليکل د جمع نوم پېژندل او په جملو کې يې کارول دي.

**هڅوونکې پوښتنې:**

- د جمع نوم څه ډول کلمه ده؟
- کولی شئ چې د جمع څو نومونه ووايئ؟

**د جمع نوم:** هغه نوم دی چې له يوه څخه پر زياتو اشخاصو، څارويو او شيانو دلالت وکړي. لکه ښوونکي، نجونې، هلکان، ونې، پسونه، خويندې، ورونه، کتابونه، ګېلاسونه او داسې نور.

په پښتو ژبه کې که وغواړو چې د ځينو مفردو نومونو په پای کې دغه (ونه، آن، يان، ګاني (ه) اوږده، (ې) څرګنده، (ي) وروستاړي راوړو په جمعو کلمو باندې بدليږي.

لکه:

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| مېز | مېزونه |
| مېږی | مېږي |
| دوبي | دوبيان |
| هلک | هلکان |
| بزګر | بزګران |
| کارګر | کارګران |
| بيزو | بيزوګان |
| خور | خويندې |
| سړی | سړي |

**ښوونکي ته لارښووني:**

- ښوونکی دې متن ولولي.
- د جمع نوم په اړه دې زده کوونکو ته د بېلګو په وړاندې کولو سره معلومات ورکړي.

## دزده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي.
۲. له هر ګروپ څخه دې يو يو تن دټولګي مخې ته راشي او دا کلمې (ګېلاسونه، ونې، هلکان، ورونه،) پرتخته باندې ولیکي نور ټولګیوال دې همدغه دجمع کلمې په جملوکې وکاروي.
۳. دجمع د نوم تعریف په لاندې جملو کې په نښه کړئ!
الف: جمع هغه کلمه ده چې پر يوه شي باندې دلالت کوي.
ب: جمع هغه کلمه ده چې له يوه شي څخه پر زياتو شيانو دلالت کوي.
۴. دلاندې مفردو کلمو څخه د جمع نومونه جوړ کړئ او په خپلو کتابچو کې يې ولیکئ.
ونه، پېغله، نجلی، هلک، غر، سیند، باغ، پسه مېږه،
آس، بوټ، مرغه، مور، پلار، اکا، نیکه

**ارزونه:**

- آيا زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- زده کوونکي د جمع په معنا او مفهوم پوه شوي دي؟
- زده کوونکو وکولی شول چې د مفردو نومونو څخه د جمع نومونه جوړ کړي؟

**کورنی دنده:**

لاندې جملې ولولئ! جمع نومونه يې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.
افغانستان ډېر غرونه لري.
زموږ په هېواد کې د منيو باغونه ډېر دي.
ټول افغانان سره ورونه دي.
کوچيان په اوړي کې سړو سيمو ته کډې کوي.

# څلور څلویښتم لوست
# شېدې پلورونکی

**موخه:** د متن لوستل، لیکل، اوزده کوونکي په دې پوه شي چې په شېدوکې اوبه ګډول لویه ګناه ده او باید ترې ډډه وشي.

## هڅوونکې پوښتنې:

- ستاسو په نظر د شېدو په پلورلو کې د اوبو ګډول ښه عمل دی؟
- څه فکر کوئ چې د دې کیسې پایله به څه وي؟



وايي چې يوه سړي څومېږې او وزې درلودې چې ډېره ښه ساتنه به يې کوله. سهار او ماښام به يې له دې څارويو څخه ډېرې شېدې اخيستلې. چې کله به يې شېدې بازار ته د خرڅولو له پاره يوړې نو يوه اندازه اوبه به يې په کې ورګډې کړې چې شېدې زياتې شي او ډېرې پيسې پرې لاس ته راوړي. وزواو مېږو به بچې زېږول او هرکال به يې شمېر زياتېده.
څه موده وروسته د وزو او مېږو يوه لويه رمه جوړه شوه. څومره چې شېدې زياتېدې هومره به يې پکې زياتې اوبه اچولې او ډېرې پيسې به يې لاس ته راوړې.
کليوال چې دده په ټګۍ پوه شول نو ښېراوې به يې ورته کولې.
يوه ورځ د منې په موسم کې ډېر سخت باران واوريده او لوی سېلاب روان شو، څو تندرونه هم ولوېدل سېلاب نور هم زور واخيست. د دغه سړي مېږې او وزې چې په نږدې خوړکې په څر بوختې وې، نيمايي يې سېلاب په يوه څپه کې

واخیستې او ویوړې، خلکو به ویل: دغه سړي چې په شېدو کې څومره اوبه اچولې وې هغه ورته سېلاب شو او د ده نیمه رمه یې یووړه.

**ښوونکي ته لارښوونې:**

- ښوونکی دې نوی لوست په لوړ آواز ولولي او بیا دې په مطلب خبرې وکړي.
- ښوونکی دې له ځو زده کوونکو څخه وغواړي چې په وار سره د کیسې په موخه خبرې وکړي.

## دزده کوونکو فعالیتونه:

۱. متن په مناسب آواز ولولئ!
۲. زده کوونکي دې له متن څخه یو بل ته د ځو جملو املا ووایي او خپلې تیروتنې دې اصلاح کړي.
۳. پوښتنو ته ځوابونه ورکړئ.
   سړي ولې په شیدو کې اوبه اچولې؟
   د دې لوست اصلي مطلب څه شی دی؟
   موږ باید په پلورلو کې څه شی په پام کې ونیسو؟
۴. له لاندې مفردو کلمو څخه په خپلو کتابچو کې دجمع کلمې جوړې کړئ.
   وزه ، موسم، تندر، مېږه، باران، خوړ، کلی ، سېلاب

**ارزونه:**

- آیا زده کوونکي متن لوستلی شي؟
- دکیسې په موخه پوه شول؟
- زده کوونکي په شفاهي توګه پوښتنوته ځوابونه ویلی شي؟
- آیا زده کوونکي پوه شول چې په هر کار کې ټګي ښه کار نه دی او باید ترې ډډه وکړو؟

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د لاندې پوښتنې موخه په خو کرښو کې ولیکي.
( د دغه سړي نیمایي مېږې او وزې ولې سېلاب یوړې؟ )

# پنځه څلوېښتم لوست

## صفت

موخه: دمتن لوستل، لیکل د صفت په معنا پوهېدل او په جملوکې د صفت کارول دي.

هڅوونکې پوښتنې:

- ستاسې په فکر صفت څه ډول کلمې ته وايي؟
- کولی شئ چې داسې جملې ووايئ چې د صفت کلمه پکې استعمال شي؟

**صفت**: هغه کلمه ده چې د نوم ځرنګوالی څرګندوي.

لکه: ښه، ښکلی، ډېر، هوښیار، سپین، تور، او داسې نور.

لاندې جملې ولولئ او هغو کلمو ته ځیر شئ چې کرښه ورلاندې اېستل شوې ده.

۱. تکړه زده کوونکې تل سبق وايي.

۲. هوښیار زده کوونکې د مفاهمې په وخت کې د یو بل خبروته غوږ نیسي.

۳. زموږ ښوونکې له موږ سره په درسونو کې ډېره مرسته کوي.

۴. د پاکو اوبو څښل بدن ته ګټه لري.

په پورتنیو جملو کې (تکړه، هوښیار، ډېره، پاکو) د صفت کلمې دي.

### ښوونکي ته لارښووني:

- ښوونکی دې متن ولولي.
- د صفت د کلمې په هکله دې معلومات ورکړي او څو صفتونه دې پرتخته ولیکي.
- ښوونکی دې صفت لرونکې جملې پر زده کوونکو باندې د املا په ډول کار کړي او بیا دې د صفت کلمې په ګوته کړي.

### دزده کوونکو فعالیتونه:

۱. متن په چوپتیا سره ولولئ!
۲. لاندې جملې په خپلو کتابچو کې ولیکئ او بیا یې د صفت تر کلمې لاندې کرښه وکاږئ.
   - د پخو مېوو خوړل بدن ته ګټه لري.
   - زیار کښ بزګر له خپلې ځمکې څخه زیات حاصل اخلي.
   - سپینه کوتره د سولې نښه ده.
   - د کندز ختېځې ډېر خوارې دي.
۳. لاندې شعر تر لوستلو وروسته په خپلو کتابچو کې ولیکئ او بیا یې د صفت کلمې په نښه اوویې لیکئ.

ښکلی باغ تازه چمن ود ګلانو
شین سحر او شورو شرو دمرغانو
په سل قسمه آوازونه ښې نغمې وي
هر طرف ته دبلبلو ترانې وي

(پښتو ۳۳مه)

### ارزونه:

- آیا زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- د صفت په معنا او مفهوم پوه شول؟
- صفتونه له یاده ویلی او په جملو کې یې کارولی شي؟
- زده کوونکو په شعرکې د صفتونو کلمې پیدا کړی شوې؟

### کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې لاندې د صفت کلمې په جملو کې وکاروي.

(سپین، هوښیار، پوه، ښه، بد، شین، لوی، رڼا، تیاره)

# شپږ څلوېښتم لوست
# مزار (شريف) او بلخ

**موخه**: د متن لوستل، ليکل د مزار شريف او بلخ په هکله معلومات ورکول دي.

**هڅوونکې پوښتنې**:

- آيا تاسو مزار شريف ليدلی دی؟ که مو ليدلی وي خبرې پرې وکړئ؟
- ويلی شئ چې بلخ زموږ د هېواد په کوم ولايت کې دی؟

مزار شريف زموږ د ګران هېواد افغانستان په شمال کې پروت دی په دې ښار کې د آبی جومات په نامه يو ښکلی جومات شته چې زموږ خلکو او د نړۍ مسلمانانو ته دزيات اهميت لرونکی دی.
مزار شريف ته نژدې د بلخ د لرغوني ښار نښانې ښکاري. د دې ښار تاريخ له ميلاد څخه پنځه سوو کالو مخکې زمانې ته رسيږي.
بلخ په اتمه ميلادي پېړۍ کې د پوهې او فرهنګ يو داسې ستر مرکز وچې د ښارونو د مور (اُم البلاد) په نامه يادېده.
دا ښار د چنګيز په تاړاکونو کې وران شو خو بيا په (۱۵) ميلادي پيړۍ کې له سره ودان شوی. په دې ښار کې ستر دېوالونه موجود وو چې اوږدوالی يې يوولس زرو متروته رسېده. دا هم په همدې وخت کې له سره جوړ شو. په مزار شريف کې خلک په کرنه او مالدارۍ بوخت دي. ځينې خلک يې په لاسي صنايعو لکه دغالۍ اوبدلو، د ګړونو او بدل او داسې نور وباندې لګيا دي. دقره قل د پسونو پالنه هم د دې سيمې ځانګړتيا ته شهرت ورکړی.

**ښوونکي ته لارښوونې:**

- متن په لوړ آواز ولوله!
- د متن د موخې په هکله معلومات وړاندې کړه!

## دزده کوونکو فعالیتونه:

۱. متن په چوپتیا سره ولولئ!

۲. لاندې جملې ولولئ، په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ او بیا د صفت ترکلمو لاندې کرښه وکاږئ.

- په دې ښار کې د ابی جومات په نامه ښکلی جومات شته.
- زموږ خلکو او دنړۍ مسلمانانو ته دزیات اهمیت لرونکي دی.
- دا جومات د خپلو سپینو کوترو د سیلونو له امله چې په شاوخوا کې یې الوځي یوه ځانګړې منظره جوړوي.

۳. لغتونه او معناګانې

| | |
|---|---|
| مقبره | زیارت |
| ځانګړې | خاصه |
| پېړۍ | قرن |

۴. د لاندې جملو تش ځایونه په مناسبو کلمو سره په کتابچو کې ډک کړئ.

الف: مزارشریف یو ______________ ښار دی.

ب: په دې ښار کې د آبی جومات په نامه یو ______________ جومات شته.

ج: ددې ښار تاریخ له میلاد څخه پنځه سوو ____________.

۵. پوښتنې:

- دمزار شریف د ښار جومات څه نومیږي؟
- په دې زیارت کې د چا مبارکه مقبره هم شته؟
- بلخ په اتمه میلادي پېړۍ کې په کوم نامه یادېده؟

**ارزونه:**

- آیا زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- زده کوونکو د مزارشریف او بلخ په هکله پوهه حاصله کړه؟
- زده کوونکو په جملو کې د صفت کلمې پیدا کړی شوې؟
- آیا پوښتنو ته یې مناسب ځوابونه ورکړل؟

**کورنۍ دنده:**

په خپلو کتابچو کې د مزار شریف او بلخ په اړه شپږ کرښې ولیکئ.

## اووه څلويښتم لوست

# د نوم او صفت ترمنځ اړيکې

**موخه:** د متن لوستل ،ليکل د نوم او صفت ترمنځ د اړيکو په هکله پوهېدل دي.

**هڅوونکې پوښتنې:**

- د تاسو په فکر د نوم او صفت ترمنځ اړيکې شته؟
- آيا کولی شئ داسې يوه جمله ووايئ چې هم نوم او هم دصفت کلمه ولري؟

لاندې جملې ولولئ او هغو عبارتونو ته ښه ځير شئ چې کرښه ترې لاندې اېستل شوې ده.

۱. هوښيار هلک هېڅکله په ناوړه عمل لاس نه پورې کوي.
۲. مهربانه مور تل خپلو ماشومانو ته پاملرنه کوي.
۳. روڼ لمر تياره نړۍ روښانه کوي.
۴. په لوړې ونې کې ډېرې مرغۍ ناستې دي.

په پورتنيو جملو کې (هوښيار، ناوړه، مهربانه، روڼ، تياره، او لوړې، ) صفتونه دي چې د (هلک، عمل، مور، لمر، نړۍ، ونې) تر نومونو دمخه راوړل شوي دي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| په پښتو ژبه کې صفت ترنوم (موصوف) څخه دمخه او کله کله وروسته راځي لکه،احمد شاه بابا، نازو انا، او صفتونه د مذکر او مونث مفرد او جمع په لحاظ د نوم تابع دي. | | | |
| لکه: | خوږناک، | خوږه منه، | پوه زده کوونکی |
| | خواږه ناکونه، | خوږې منې، | پوهه زده کوونکې |

### ښوونکي ته لارښووني:

- متن په مناسب آواز ولوله!
- د نوم او صفت ترمنځ د اړيکو په هکله معلومات ورکړه او په جملو کې يې د نوم او صفت بېلګې د تختې پرمخ وليکه!

### دزده کوونکو فعاليتونه:

۱. متن دې په چوپتيا سره ولولي.
۲. لاندې صفتونه دې لومړی د موصوف يعنی د نوم سره يو ځای وليکي او بيا دې په جملو کې وکاروي.

(تکړه، ښه ، قلم، تېره، زده کوونکی، چاړه، وېښتان، کتاب، لاسونه، کالي، تود ، سوړ)

دلاندې تشو جملو ځايونه د چوکاټ په مناسبو صفتونو او نومونو سره په خپلوکتابچو بشپړې کړئ.

دا انار________________ دی.

دا ___________________ خوږه ده.

دا کيله ___________ خوږه ده.

د ___________________ انګور خواږه دي.

د ___________________ پوستکی ___________ وي.

| خوږ، منه، خوږه، کندهار، چارمغز، کلک |
|---|

### ارزونه:

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- آيا زده کوونکي په دې پوه شول چې په پښتو ژبه کې صفت د نوم څخه مخکې راځي؟
- زده کوونکي کولی شي چې له ياده داسې جملې ووايي چې د نوم او صفت ترمنځ اړيکي پکې وښيي؟

### کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې پنځه داسې جملې په خپلوکتابچو کې وليکي چې دنوم اوصفت ترمنځ اړيکي په کې وښيي.

# د پوهنې ترانه

پوهنه ده رڼا     وطن ته موښکلا
کتاب او قلم     زموږه رهنما

پوهنه ده رڼا، وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

وطن زما يې ځان     له تانه شم قربان
ته وينه دافغان     ته لوړ په ټول جهان

پوهنه ده رڼا، وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

آباد اوسې آباد     وطنه ته شې ښاد
موږه سرښندوپه تا     اوسې تو دې آزاد

پوهنه ده رڼا، وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

ته کور يې هم مې ګور     ته پلارېې هم مې مور
ته زړه دآسيا     او زما دسترګو تور

پوهنه ده رڼا، وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

ته ننګ يې دآريا     او تاج يې ديما
ځاريږمه له تا     افغانستان زما

پوهنه ده رڼا، وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

محمد مُعين مرستيال